

# ملي سرود

دا وطن افغانستـان دی
دا عـزت د هـر افغان دی
کور د سولې کور د تورې
هر بچی یې قهرمـان دی
دا وطن د ټولـو کور دی
د بـلوڅــو د ازبکــو
د پښـتون او هـزاره وو
د تـرکمنــو د تاجکــو
ورسره عرب، گوجر دي
پـامیریـان، نـورستـانیـان
براهوي دي، قزلباش دي
هـم ایمـاق، هم پشه یان
دا هیـواد به تل ځلیږي
لکه لمـر پر شـنه آسمان
په سـینه کې د آسـیا به
لکـه زړه وي جـاویـدان
نوم د حق مـو دی رهبـر
وایـو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




د پوهنې وزارت

# جغرافیه

## اووم ټولګی

۱۳۹۸

هـ.ش

# د کتاب ځانګړتیاوې

---

مضمون: جغرافیه

مؤلفین: د تعلیمي نصاب د جغرافیه  دیپارتمنت  علمي او مسلکي غړي

اډیټ کوونکي: د پښتو ژبې د اډیټ د څانګې  علمي او مسلکي غړي

ټولګی: اووم

د متن ژبه: پښتو

انکشاف ورکوونکی: د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست

خپروونکی: د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هجري شمسي

د چاپ ځای: کابل

چاپخونه:

برېښنالیک پته: curriculum@moe.gov.af

---

# د پوهنې د وزیر پیغام

## اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدایﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند راښښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفیﷺ چې د الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کېږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تآسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدایﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

دمعیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

**د پوهنې وزیر**

**دکتور محمد میرویس بلخي**

# فهرست

| گڼه | سر لیکون | مخونه |
| --- | --- | --- |

# لومړی څپرکی

## د جغرافيې بنسټ (مبادي)



د ځمکې د کُرې مدل

په دغه څپرکي کې لولو:

- جغرافيايي مفاهيم او اصطلاحات (د جغرافيې د علم تعريف او د جغرافيې د لوستلو گټې)
- د ځمکې کُره
- د استوا کرښه، د سرطان کرښه، د جدي کرښه، د مدارونو سيمه، معتدلې سيمې او سړې سيمې.
- شمالي او سهيلي نيمې کُرې
- شمالي قطب، سهيلي قطب، د شمالي قطب دايره، د سهيلي قطب دايره او د ځمکې محور.
- عرض البلدونه
- طول البلدونه
- د ځمکې وضعي حرکت او نتيجې يې
- د ځمکې انتقالي حرکت او نتيجې يې
- د څپرکي لنډيز

# د څپرکي هدفونه

له زده کوونکو څخه هيله کېږي چې ددغه څپرکي له لوستلو څخه وروسته د جغرافيې له علم او د هغه د لوستلو له ګټو سره بلد شي.
- د دغه څپرکي مفاهيم، اصطلاحات، ارزښتونه او مهارتونه زده کړي.
- په خپل چاپېر د ځمکې څرخېدل او د شپې او ورځې له پيدايښت سره يې اړيکه درک کړي.
- د لمر په شاوخوا د ځمکې د ګرځېدو او د څلورو فصلونو د پيدايښت پر اړيکه پوه شي.
- د ځمکې پرمخ د هرې سيمې د وخت د بدلون او طول البلد د کرښو ترمنځ اړيکې ټينګې کړي.
- د طول البلد او عرض البلد له کرښو سره بلد شي.

له زده کوونکو څخه هيله کېږي چې ددې څپرکي په لوستلو سره لاندې مهارتي هدفونو ته لاس رسی ومومي:
- د ځمکې کُره د طول البلد او عرض البلد له کرښو سره رسم کړای شي.
- وکولای شي د هر طول البلد وخت وټاکي.
- د ځمکې د مخ د بېلابېلو سيمو د اقليم توپير وکولای شي.
- د ځمکې د وضعي حرکت اهميت بيان کړي.
- د ځمکې د انتقالي حرکت اهميت بيان کړي.

# جغرافيايي مفاهيم او اصطلاحات



آيا پوهېږئ چې د جغرافيې علم د څه په هکله معلومات راکوي؟

## د جغرافيې د علم تعريف

جغرافيه د نړۍ د ښودلو هنداره ده چې د ځمکې او کايناتو په ټولو برخو کې موږ ته معلومات راکوي. بشري ټولنې د خپلو اړتياوو د لرې کولو لپاره په کرنې، مالدارۍ د کانونو په را ايستنې او نورو توليدي کارونو بوخت دي چې په مستقيمه او يا په غير مستقيمه توګه د طبيعي چاپېريال څخه ګټه اخلي.بالمقابل د چاپېريال ډول ډول شرايط هم د انساني ټولنو پر ژوند او اقتصاد پوره اغېزې لري؛ د بېلګې په توګه: هغه خلک چې په دښتو او صحراګانو کې استوګنه کوي، د هغوی اقتصاد په مالدارۍ متکي دی او په کوچې بڼه ژوند کوي او همدارنګه هغه خلک چې د سيندونو په غاړو استوګن دي، دايمي کورونه او اقتصاد يې پر کرنه، د کبانو په ښکار او په ځينو ځايونو کې د بېړيو په چلونې متکي دی. د پورتنيو مطالبو په نظر کې نيولو سره جغرافيه داسې تعريفوو: جغرافيه هغه علم دی چې د انسان او طبيعي چاپېريال متقابلې اغېزې تر څېړنې لاندې نيسي.

## د جغرافيې ګټې

موږ او تاسو د خپل کلي، ښار او هېواد په هکله چې په هغه کې اوسېږو معلومات لرو، خو د نورو ښارونو، هېوادونو، د ځمکې کرې، لمريز نظام، سيارو او نورو موضوعاتو په هکله معلومات نه لرو. وخت او امکانات هم محدود دي چې هرځای ته لاړشو او د هغو په هکله معلومات لاسته راوړو. د



د نورستان طبيعي او بشري منظره

جغرافيې علم او د هغه مستند معلومات له موږ سره مرسته کوي، پرته له دې چې چېرته لاړشو او يا سفر وکړو، صحيح او مؤثق علمي معلومات لاسته راوړو.

### د ټولګي فعاليت

په ټولګي کې دې د زده کوونکو هره ډله پورتني عکس ته وګوري چې کوم شيان پکېويني؟ له هرې ډلې څخه دې يو تن د خپلې ډلې نظريې د ټولګي ترمخه نورو ته بيان کړي.

### پوښتنې

١- جغرافيه تعريف کړئ.

٢ـ جغرافيه ز موږ په ژوند کې څه مرسته کوي؟

٣ـ د خپلې استوګنې د ځای د يوې په زړه پورې منظرې په هکله معلومات ورکړئ.

دويم لوست

# آیا ځمکه کروي شکل لري؟



د ځمکې عکس له سپوږمکۍ څخه

آیا پوهېږئ چې ځمکه څه ډول شکل لري؟

ځمکه د لمريز نظام له سيارو څخه ده چې کابو کُروي شکل لري. د هغو د قيقو څېړنو پر اساس چې شوي دي د ځمکې قطبونه لږ ننوتي او د استوا په برخه کې لږ[1] وتلي دي. په دې اساس ځمکه د يوې بشپړې کرې شکل نه لري، بلکې هغه د يوې نامنظمې کرې په شکل تعريفوي. څکه چې استوايي قطر يې د قطبي قطر په پرتله ۲۱ کيلومتره اوږد دی. د ځمکې کُره د جوړښت له مخې لوړې او ژورې هوارې دښتې او همدارنګه ښپانده سيندونه، جهيلونه، سمندرګي او سمندرونه لري. د ځمکې ډېره لوړه څوکه د ايوريست څوکه ده چې د آسيا د لويې وچې د هماليا په غرونو کې چې د هند په شمال کې پراته دي، موقعيت لري او د سمندر له سطحې څخه (۸۸۴۸) متره لوړوالی لري. د ځمکې ډېره ژوره برخه د چين په سهيل ختيځ کې په آرام سمندر کې ده چې (۱۱۰۲۲) متره

۱. استوايي قطريې ۱۲۷۵٤ کيلومتره او قطبی قطر يې ۱۲۷۳۳ کيلومتره دي.

د سمندر له سطحې څخه ټيټه پرته ده او د ماريانا گودال په نامه يادېږي.




## د ټولگي فعاليت

د زده کوونکو هره ډله دې د مجسمې کُرې يا نقشې په مرسته د ځمکې ډېره لوړه څوکه، د ځمکې ډېره ژوره برخه په تقريبي توگه پيدا کړي. وروسته دې د هرې ډلې استازی د ټولگي په مخ کې هغه تشريح کړي.

## پوښتنې

۱ـ ځمکه منظمه کره ده او که غير منظمه؟

۲ـ د ځمکې کومې برخې وتلې او يا ننوتلې دي؟

۳ـ په هغه ځای کې چې تاسو ژوند کوئ، لوړې او ژورې برخې يې څه نومېږي؟

٤ـ د نړۍ جگه څوکه څومره لوړوالی لري او په کوم ځای کې ده؟

۵ـ د نړۍ ژوره برخه چېرته پرته ده او څومره ژور والی لري؟

# د استوا کرښه او اقلیمي سیمې




د استوا کرښه او اقلیمي سیمې

کومه فرضي کرښه د ځمکې کره په دوو مساوي شمالي او جنوبي برخو وېشي؟

## د استوا کرښه

لویه فرضي دایره ده چې د ځمکې کُره په دوو برابرو برخو وېشي او د طول البلد پر دایرو او محور باندې عمود ده. د استوا د کرښې شمالي برخې ته شمالي نیمه کُره او جنوبي برخې ته یې جنوبي نیمه کره ویل کیږي.

## د سرطان کرښه

د ورې د لومړۍ نېټې څخه وروسته، د لمر وړانګې ورو ورو د شمالي عرض البلدونو پر لور عمودي لګېږي تر څو چې د سرطان په لومړۍ نېټه د شمالي عرض البلد په $\frac{1}{2}$ ۲۳ درجو باندې عمود ولګېږي. له دې کبله دا عرض البلد د سرطان د دایرې (Tropic of Cancer) په نامه یادوي. په دې وخت کې د شمالي نیمې کرې دوبی او د دوبي لمرېز انقلاب وي.

## د جدي کرښه

د تلې له لومړۍ نېټې څخه وروسته د لمر وړانګې د استوا د دايرې جنوب په لور عمودي لګېږي، ترڅو د جدي په لومړۍ نېټه دجنوبي عرض البلد په $\frac{1}{2}$ ۲۳ درجو باندې عمود لګيږي. له دې کبله دا عرض البلد د جدي د دايرې (Tropic of Capricorn) په نامه يادوي او د جنوبي نيمې کرې دوبی وي. د جدي له لومړۍ نېټې څخه وروسته د لمر وړانګې بېرته د استوا خواته حرکت کوي. د درې مياشتو په اوږدو کې يعنې د وری په لومړۍ بيا د استوا پر کرښې باندې عمود لګيږي.

د استوا، سرطان او جدي کرښې



### د مدارین سیمه

د جدي او سرطان پر کرښو د لمر وړانګې یو یوځل او پر نورو عرض البلدونو چې د سرطان او جدي د دایرو تر منځ پراته دي، د لمر وړانګې دوه ځلې عمودي لګیږي، نوځکه دا سیمه د استوایـي مدارینو په نامه یادوي. چې هوا یې ډېره توده او مرطوبه ده او زیات اورښت لري.



## معتدلې سيمې

په شمالي او جنوبي نيمو کرو کې د عرض البلد د $23\frac{1}{2}$ درجو او $66\frac{1}{2}$ درجو تر منځ پرتې دي چې هوا يې معتدل ده.

## سړې او باردې سيمې

په دواړو نيمو کرو کې د $66\frac{1}{2}$ درجو او ۹۰ درجو په منځ کې هوا نوره هم سړه وي چې بارده او يخچالي سيمه جوړوي.



### په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې په څو ډلو وويشل شي. هره ډله دې د ځمکې د کُرې شکل رسم کړي او په هغه باندې دې د استوا کرښه، د سرطان کرښه، د جدي کرښه، د مدارين سيمې، معتدلې سيمې او سړې سيمې ديوې موضوع په هکله په خپل منځ کې سره بحث وکړي او د خپل بحث پرېکړه دې د ټولګي تر مخ نوروته بيان کړي.



### پوښتنې

۱- د استوا کرښه څه ده؟

۲ـ د لمر وړانګې څه وخت د استوا پر کرښې عمود لګېږي؟

۳ـ د جدي کرښه په کومه سيمه کې ده؟

٤ـ د سرطان دايره ولې د سرطان د دايرې په نامه يادوي؟



### له ټولګي څخه بهر فعاليت

زده کوونکي دې پلټنه وکړي چې د لمر وړانګې څه وخت د دوی د استوګنې په سيمه کې عمودته نژدې او څه وخت د لمر وړانګې ډېرې کږې (مايل) لګېږي.

# شمالي او سويلي نيمې کُرې




زده کوونکي دې د شمالي او سويلي نيمو کُرو، شمالي قطب او سويلي قطب سره بلد شي.

آيا پوهېږئ زموږ هيواد کومه نيمه کُره کې موقعيت لري؟

که د ځمکې کُرې ته ځير شو، نو ليدل کېږي چې د استوا کرښه هغه پردوو برابرو برخو ويشي. د استوا کرښه چې د عرض البلدونو مبدا منل شوې ده د عرض البلد صفر درجه ده. د عرض البلد نوي درجې په شمالي نيمه کره کې او د عرض البلد نوي درجې په سويلي نيمه کره کې دي. که ځير شو د استوا کرښه په سويلي امريکا کې د امازون د سيند له شمال، په افريقا کې د وکتوريا له جهيل او په آسيا کې د سوماترا له ټاپو څخه تېرېږي. په دې توګه د وچې زياتره سيمې، لکه: شمالي امريکا، مرکزي امريکا، د اروپا ټوله لويه وچه، د آسيا او د افريقا زياته برخه په شمالي نيمه کره کې پراته دي. لومړني انسانان او لرغوني مدنيتونه هم په همدې لويو وچو کې منځ ته راغلي او وده يې کړې ده، خو په سويلي نيمه کره کې يوازې استراليا، سويلي افريقا، د سويلي امريکا زياته برخه او انتارکتيکا پراته دي. له بلې خوا د سمندرونو زياته برخه په جنوبي نيمه کره کې ده؛ د بېلګې په توګه: د هند سمندر، د

آرام سمندر زیاته برخه، سویلي کنګل سمندر او د اطلس سمندر سویلي برخې په سویلي نیمه کره کې موقعیت لري، نو ځکه سویلي نیمه کره د اوبیزې نیمې کُرې او شمالي نیمه کره د وچې نیمې کرې په نامه یادوي. د سویلي نیمې کرې د هوا حالت سمندري او د شمالي نیمې کرې د هوا حالت کابو وچه ده. د نړۍ وګړي ډېر په شمالي نیمه کره کې ژوند کوي.

د نړۍ نقشه




### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي، هره ډله دې په ټولګي کې نیمه کره د نیمې دایرې د قوس په توګه جوړه کړي. یوه ډله دې شمالي نیمه کره او بله ډله دې سویلي نیمه کره تمثیل کړي.

### پوښتنې

١- په شمالي نیمه کُره کې د وچې کومې ټوټې پرتې دي؟
٢ـ په سویلي نیمه کُره کې کوم سمندرونه موقعیت لري؟
٣ـ آسترالیا په کومه نیمه کُره کې موقعیت لري؟
٤ـ افغانستان په کومه نیمه کره کې دی؟

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د شمالي او سویلي نیمې کرې شکل د سمندرونو او وچو له ټوټو سره په خپلو کتابچو کې رسم کړي.

# د ځمکې شمالي او سویلي قطبونه




آیا پوهېږئ د نړۍ په کومه برخه کې شپې مياشتې شپه وي؟

که د ځمکې د کُرې شکل ته ځیر شو، نو لیدل کېږي چې د استوا کرښه ځمکه له ختیځ نه لوېدیځ ته په دوو برخو وېشي چې شمالي برخه یې د شمالي نیمې کُرې په نامه او جنوبي برخه یې د سویلي نیمې کُرې په نامه یادیږي. د استوا کرښه د عرض البلد صفر درجه ده، نوي درجې په شمال او نوي درجې د ځمکې په سویل کې پرتې دي، خو د نوي درجو عرض البلدونو پای د ځمکې د قطبونو وروستۍ برخه جوړوي.

## شمالي او جنوبي قطب

شمالي قطب په شمال کې د محور وروستۍ نقطه ده چې عرض البلد یې شمالي نوي درجې دی. همداراز سویلي قطب د ځمکې په سویل کې د محور وروستۍ ټکی دی چې عرض البلد یې سویلي نوي درجې دی. له دې کبله د عرض البلد د صفر درجې ( د استوا کرښې) اوږدوالی ډېر زیات دی، د عرض البلد د ٤٥ درجې اوږدوالي منځني او د قطبینو ۹۰ درجې عرض البلدونه ډېر کوچني عرض البلدونه شمېرل کېږي چې اوږدوالی یې صفر ته رسیږي.



### د ارکتيک دايره

د شمالي قطب دايره (ارکتيک) د شمالي عرض البلد $۶۶\frac{۱}{۲}$ درجې ده.

### د انتارکتيک دايره

د جنوبي قطب دايره (انتارکتيک) د سويلي عرض البلد $۶۶\frac{۱}{۲}$ درجې ده.

### د ځمکې محور

که چيرې د شمالي قطب وروستی نقطه د سويلي قطب له وروستی نقطې سره و نښلو، هغه کرښه چې دا دوه ټکي سره نښلوي د محور په نامه يادېږي. د محور شمالي پای شمالي قطب او د محور سويلي پای د سويلي قطب په نامه يادوي. جغرافيايي شمال قطب د قطب ستوري په لور دی چې د ځمکې محور ته يې له عمودي حالت څخه ښي لور ته د $۲۳\frac{۱}{۲}$ درجو په زاويه ميلان ورکړی دی. جغرافيايي شمال قطب چې د قطب ستوري په لور دی او د قطب ستوري موقعيت د دب اکبر سره موازي په شنه آسمان کې د شپې له خوا کولای شو وټاکو.

### د ټولګي فعاليت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، يوه ډله دې د ځمکې د محور په هکله او بله ډله دې د شمالي نيمې کُرې په هکله سره بحث وکړي او وروسته د هرې ډلې استازي دې د بحث پايله په ټولګي کې بيان کړي.

### پوښتنې

۱ـ شمالي قطب د عرض البلد په کومه درجه کې پروت دی؟
۲ـ سويلي قطب د ځمکې په کومه برخه کې موقعيت لري؟
۳ـ د قطب ستوری د ځمکې د کومې برخې په لور دی؟
٤ـ کوم عرض البلد ته د استوا کرښه ويل کېږي؟

### له ټولګي څخه بهر فعاليت

هر زده کوونکی دې د ځمکې شکل رسم کړي، شمالي او سويلي نيمې کُرې دې په هغه کې وښيي.

# عرض البلد




عرض البلد

آیا پوهېږئ د عرض البلد دایرې څه شی دي او څه اهمیت لري؟

د عرض البلد دایرو ته موازي دایرې هم وايي، ځکه دا ټولې کرښې د استوا له کرښې سره موازي دي چې د نقشې او مجسمې کرې په مخ باندې په ډاګه لیدل کېږي. عرض البلدونه هغو دایرو ته ویل کېږي چې د استوا له کرښې سره موازي د ختیځ لوېدیځ لوري ولري یوله بل سره موازي او د طول البلد پر دایرو عمود دي. څرنګه چې ځمکه کروي ده، د عرض البلد ډېره لویه دایره د استوا کرښه ده او د عرض البلدونو مبداء (پیل) ګڼل کېږي، نو ځکه صفر درجه منل شوې ده. د استوا شمالي عرض البلدونوته شمالي عرض البلدونه وايي چې د (N) په توري ښودل کېږي او د استوا جنوبي عرض البلدونو ته جنوبي عرض البلدونه وايي او د (S) په توري ښودل کېږي. د عرض البلد هره درجه په ٦٠ دقیقو او هره دقیقه په ٦٠ ثانیو وېشل شوې چې په نقشو کې د درجې، دقیقې او ثانیې په توګه ښودل کېږي. که شکل ته ځیر شو، د عرض البلد ۹۰ درجې په شمالي نیمه کُره کې او د عرض البلد ۹۰ درجې په جنوبي نیمه کُره کې شته دي. د عرض البلد لویې دایرې ته د استوا کرښه وايي چې د ځمکې کُره په دوو مساوي برخو وېشي او عبارت دي له: شمالي نیمې کُرې او جنوبي نیمې کُرې څخه. د عرض البلد ډېره کوچنۍ دایره شمالي او جنوبي ۹۰ درجې دي چې اوږدوالی یې صفرته رسیږي.

د کال په بېلا بېلو فصلونو کې د لمر د وړانگو لگېدل د غرمې پر ۱۲ بجو کې د کابل د عرض البلد پر ۳٤ درجو او ۳۲ دقیقو باندې




د لمر وړانگو کوږوالی د کال په بېلو بېلو موسمونو کې




د لمر وړانگې د استوا پر کرښې د حمل (وري) او میزان (تلې) پر لومړۍ، د سرطان په کرښې باندې د سرطان (چنگاښ) پر لومړۍ او د جدي په دایرې باندې د جدي(مرغومي) پر لومړۍ نېغې عمود لگیږي. له همدې کبله د لمر وړانگو د لگېدو زاویه او موقعیت په هر فصل کې توپیر لري. پاملرنه دې وشي چې د لمر د وړانگو د لگېدو توپیر د فصلونو په بدلون او د نباتاتو په وده او اقلیمي سیمو باندې مهمه اغېزه لري، په ځانگړې توگه په معتدلو او قطبي سیمو کې.

### د ټولگي فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي ، لومړۍ ډله دې د شمالي عرض البلدونو دایرې، دویمه ډله دې د جنوبي عرض البلد دایرې رسم کړي او خپل رسم شوي شکلونه دې د ټولگي پر وړاندې تشریح کړي.

### پوښتنې

۱– د استوا دایره تعریف کړئ.

۲ـ د سرطان دایره له کومې درجې څخه تېرېږي ؟

الف) $\frac{۱}{۲}$ ۳۳ درجې ب) شمالي $\frac{۱}{۲}$ ۲۳ درجې ج) جنوبي $\frac{۱}{۲}$ ۲۳ درجې

۳ـ قطبي دایرې کوم عرض البلدونه ښيي ؟

### له ټولگي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د عرض البلد دایرې په یوه کره کې رسم کړي او د مهمو دایرو نومونه دې واخلي.

# په طول البلد پوهېدل څه اهميت لري؟




طول البلدونه

- د طول البلد له دايرو سره د زده کوونکو بلدتيا.

آيا پوهېږئ چې د طول البلدونو مبداء کومه کرښه ده؟

د جغرافيايي نـقشو پر مخ داسې کرښې رسم شوې دي چې د هغو په وسيله په نقشې باندې د ځمکې پرمخ هره نقطه چې وغواړو پيدا کولی شو. دا کرښې د طول البلد او عرض البلد کرښې دي چې د جغرافيايي وضعيه کمياتو په نوم هم يادېږي. ځمکه دوه قطبه لري، شمالي قطب او جنوبي قطب. هغه فرضي کرښې چې د شمالي قطب څخه پيل او ترجنوبي قطبه رسېږي د طول البلد (نصف النهار) په نامه يادېږي. له دې امله د يوې دايرې محيط (۳٦۰) درجې دی، نو د طول البلد د ټولو درجو شمېر (۳٦۰) درجې کېږي. د طول البلد هغه کرښه چې د لندن په ښار کې له ګرينويچ څخه تېرېږي د طول البلدونو مبداء ده او صفر درجه منل شوې ده چې د طول البلد (۱۸۰) درجې يې د ګرينويچ ختيځ خواته پرتې دي او د ختيځ طول البلدونو په نامه او (۱۸۰) نورې يې د ګرينويچ لوېديځ خواته پرتې دي او د لوېديځ طول البلدونو په نامه يادېږي. د طول البلد هره درجه په (٦۰) دقيقو او هره دقيقه

يې په (٦٠) ثانيو باندې وېشل کېږي. د طول البلد کرښې په يوازې توگه د نړۍ په بېلو بېلو ځايونو کې د وخت توپير ښيي. په نقشو کې د طول البلد او عرض البلد د کرښو تقاطع د ځايونو موقعيت ښيي.



**د ټولگي فعاليت**

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د ځمکې کره رسم کړي او پرهغې دې شمالي قطب، جنوبي قطب، د گرينويچ د طول البلد کرښه او ختيځ او لوېديځ طول البلدونه وښيي. وروسته دې يوتن د خپلې ډلې په استازيتوب زده کوونکو ته خپله موضوع په ټولگي کې توضيح کړي.



**پوښتنې**

١ـ د کومو کرښو د تقاطع په وسيله يوه نقطه د نقشې پرمخ موندلای شو؟
٢ـ د ټولو طول البلدو شمېر څو درجې دی او ولې؟
٣ـ د صفر درجې طول البلد له کوم مهم ښار څخه تېرېږي؟
٤ـ په نړۍ کې د وخت توپير د کومو کرښو په وسيله ښودل کېږي؟
٥ـ جغرافيايي طول البلد تعريف کړئ؟



**له ټولگي څخه بهر فعاليت**

د نن ورځې د لوست لنډيز په پنځو کرښو کې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# د ځمکې وضعي حرکت او د هغه پايلې




آيا پوهېږئ چې د ځمکې له وضعي حرکت څخه څه نتيجې منځ ته راځي؟

ځمکه دوه ډوله مهم حرکتونه لري: وضعي حرکت او انتقالي حرکت. ځمکه په ۲٤ ساعتونو کې د خپل محور په چاپېر چورلي او خپله دوره بشپړ وي چې دا حرکت د ځمکې د وضعي حرکت په نامه ياديږي. دځمکې وضعي حرکت له نتايجو څخه د شپې او ورځې منځ ته راتګ دی. لمر تل په يوه طول البلد کې د ختلو په حالت کې او د هغه په مخالف لوري کې په يوه طول البلد کې د پرېوتو په حالت کې وي، نوځکه په ټولو طول البلدونو کې شپه او ورځ پرله پسې واقع کېږي. د ځمکې کره چې د طول البلد (۳٦۰) درجې لري، د (۲٤) ساعتونو په موده کې د لمر د وړانګو له مخې تېرېږي. په دې اساس په يوه ساعت کې د لمر د وړانګو له مخې د طول البلد (۱۵) درجې تېرېږي. $۳۶۰° \div ۲۴ = ۱۵°$ د طول البلد يوه درجه په څلورو دقيقو کې د لمر له مخې تېرېږي. لومړی ختيځ طول البلدونه د لمر له مخې تېرېږي او له هغو څخه وروسته لوېديځ طول البلدونه د لمر له مخې تېرېږي، ځکه نو د ختيځ طول البلدونو وخت نسبت لوېديځو طول البلدونو ته ناوخته وي. د بېلګې په توګه: د کابل ښار چې د ختيځ طول البلد په (٦۹) درجو کې پروت دی او د مکې معظمې ښار چې د ختيځ طول البلد په (۴۰) درجو کې پروت دی د وخت توپير به يې څومره وي؟

يو ساعت او شپږ پنځوس دقيقې (۶۹°-۴۰°=۲۹°×۴=۱۱۶َ÷۶۰=۱/۵۶َ) په دې اساس د کابل او مکې معظمې ښارونو په منځ کې د وخت توپير يو ساعت او شپږ پنځوس دقيقې دی چې په دې صورت کې که

د کابل وخت د غرمې نه وروسته یوه بجه او شپږ پنځوس دقیقې وي، د مکې معظمې وخت به د غرمې ۱۲ بجې وي. د یوې سیمې د وخت د پیداکولو لپاره له نقشې څخه د هغې سیمې د طول البلد درجه پیدا کوو. وروسته د هرې درجې توپیر له خپل ښارسره پرتله کوو. څرنګه چې هره درجه په څلورو دقیقو کې د لمر له مخې تېرېږي، نو هغه په څلورو دقیقو کې ضربوو، په دې توګه د دوو سیمو تر منځ د وخت توپیر موندل کېږي.

### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په څو ډلو ووېشل شي. هره ډله دې د لندن د ګرینویچ ښار چې د طول البلد په صفر درجې کې پروت دی او کابل ښار چې د ختیځ طول البلد په ٦٩ درجو کې پروت دی، د هغو ترمنځ د وخت توپیرمعلوم کړي او سم ځواب دې د ټولګي ترمخ وړاندې کړي.

په دې شکل کې د طول البلد °۳۶۰ په ۲۴ ساعتو کې د لمر د وړانګو له مخې څخه تېرېږي.




### پوښتنې

۱ـ ځمکه څو ډوله حرکتونه لري؟

۲ـ د ځمکې وضعي حرکت څرنګه یو حرکت دی؟

۳ـ د طول البلد څو درجې د ۲٤ ساعتونو په موده کې د لمر له مخې تېرېږي؟

٤ـ د طول البلد هره درجه په څومره وخت کې د لمر له مخې تېرېږي؟

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

د وضعي حرکت د پایلو په هکلو لنډ معلومات ولیکئ.

# د ځمکې انتقالي حرکت




د ځمکې انتقالي حرکت

آیا پوهېږئ چې د کال څلور فصلونه د ځمکې د کوم حرکت په پایله کې منځ ته راځي؟
د ځمکې انتقالي حرکت د لمر په چاپېره ترسره کېږي او مدار يې بیضوي دی. لمر د بیضوي په یوه محراق کې ځای لري. له دې کبله د ځمکې واټن له لمر څخه په دوبي او ژمي کې توپیر لري. نژدې واټن يې د ۱٤۷ میلیونه کیلومتره او ډېر لیرې واټن يې ۱۵۲ میلیونه کیلومتره دی. د ځمکې حرکت پرمدار باندې په یوه ثانیه کې د (۳۰) کیلومترو په چټکوالي ترسره کېږي.

- په پسرلي کې د لمر وړانګې د استوا پر کرښې باندې عمود وي او هغه هم د ورې پر لومړۍ باندې.
- د چنګاښ لومړۍ ورځ د دوبي د فصل پیل وي او د لمر وړانګې د سرطان پر دایرې باندې عمود څلیږي.
- د تلې په لومړۍ د منې د فصل پیل او د لمر وړانګې د استوا پر کرښې باندې عمود لګیږي.
- د جدي (مرغومي) په لومړۍ کې د ژمي د فصل پیل او د لمر وړانګې د جدي پر دایرې باندې عمود لګیږي.
- له بلې خوا د سرطان (چنګاښ) لومړۍ نېټه د لمر وړانګې د ارکتیک د شمالي عرض البلد $\frac{1}{2}$۶۶

درجو له شا څخه مماس تېرېږي او ټول شمالي قطب د لمر د وړانګو لاندې راځي، خو په جنوبي قطب کې د لمر وړانګې نه لیدل کېږي، ځکه په شمالي قطب کې شپږ میاشتې ورځ او په جنوبي قطب کې شپږ میاشتې شپه منځ ته راځي.

- د دې په خلاف د جدي (مرغومي) په لومړۍ کې د لمر وړانګې د انتارکتیک (جنوبي $66\frac{1}{2}$ درجې عرض البلد) څخه مماس تېرېږي ټول جنوبي قطب د لمر د وړانګو په وسیله روښانه کېږي او په جنوبي قطب کې شپږ میاشتې ورځې منځ ته راځي چې دا حالت د شمالي قطب په خلاف وي.
- د حمل (وري) لومړۍ ته د پسرلي اعتدال او د میزان (تلې) لومړۍ ته د منې اعتدال[1] وايي.
- د سرطان(چنګاښ) لومړۍ ته د دوبي لمریز انقلاب او د جدي (مرغومي) لومړۍ ته د ژمي شمسي انقلاب وايي[2].

د سرطان او جدي کرښو ترمنځ د لمر د وړانګو تګ او راتګ په دولسو میاشتو کې پوره کېږي او په منځنیو عرض البلدونو کې څلور فصله (پسرلی، دوبی، منی او ژمی) روښانه لیدل کېږي.

### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې د ځمکې انتقالي حرکت رسم کړي او د هغه په هکله دې په ټولګي کې خپلو ټولګیوالو ته معلومات ورکړي.

### پوښتنې

۱ـ د ارکتیک دایره د ځمکې په کومه برخه کې ده؟
۲ـ د سرطان دایره څه اهمیت لري؟
۳ـ د پسرلي اعتدال څه دی؟
٤ـ د دوبي لمریز انقلاب څه وخت منځ ته راځي؟
٥ـ په شمالي نیمه کره کې شپږ میاشتې ورځ څه وخت منځ ته راځي؟

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

د ځمکې د حرکتونو په هکله یو مطلب ولیکئ او په ټولګي کې یې ولولئ.

---

۱. د پسرلي اعتدال ته ربیعي اعتدال Vernal Equinox او د منې اعتدال ته خریف اعتدال Autumnal Equinox هم وايي.
۲. د دوبي لمریز انقلاب ته Summer Solistice یا سیفي انقلاب او د ژمي انقلاب ته Winter Solistice یا شتوي هم وايي.

## د لومړي څپرکي لنډیز

– جغرافیه هغه پوهه ده چې د انسان او طبیعي چاپېریال متقابلې اړیکې مطالعه کوي. د جغرافیې د پوهې په مطالعې سره د ډېرو لرو سیمو په باره کې صحیح او علمي معلومات ترلاسه کوو.

– ځمکه چې د لمریز نظام د سیارو له جملې څخه ده کُروي شکل لري. د استوا کرښه یوه فرضي دایره ده چې ځمکه په دوو شمالي او سویلي نیمو کرو وېشي.

– د سرطان دایره هغه کرښه ده چې د شمالي عرض البلد په $\frac{1}{2}$ ۲۳ درجوکې پرته ده او د چنګاښ په لومړۍ کې وربانديې د لمر وړانګې عمود لګیږي.

– د جدي دایره هغه کرښه ده چې په جنوبي $\frac{1}{2}$ ۲۳ درجوکې پرته ده او د مرغومي په لومړۍ کې وربانديې د لمر وړانګې عمود لګیږي.

– معتدلې سیمې په دواړو نیموکروکې د $\frac{1}{2}$ ۲۳ درجو او $\frac{1}{2}$ ٦٦ درجو په منځ کې پرتې دي او معتدل اقلیم لري.

– سړې سیمې په دواړو نیموکروکې د $\frac{1}{2}$ ٦٦ درجو د عرض البلدونو او شمالي او سویلي قطب ترمنځ پرتې دي چې سوړ اقلیم لري.

– د استوا له کرښې شمال خواته د شمالي نیمې کرې په نامه یادوي. د استوا له کرښې سویل خواته د سویلي نیمې کرې په نامه یادوي. د شمالي قطب له دایرې (ارکتیک) نه تر شمالي نوي درجې پورې شمالي قطب او د سویلي قطب له $\frac{1}{2}$ ٦٦ درجو (انتارکتیک) څخه تر جنوبي ۹۰ درجې عرض البلد پورې د سویلي قطب په نامه یادوي.

– د ځمکې محور فرضي کرښه ده چې شمالي او سویلي قطب له یوبل سره په مستقیمه توګه نښلوي او ځمکه دهغه په چاپېره له لوېدیځ څخه د ختیځ په لور څرخي.

– هغه کرښې چې د ځمکې په کره کې له ختیځ څخه د لوېدیځ په لور کښل شوي دي او د استوا کرښې سره موازي دي د عرض البلد د کرښو په نامه یادېږي چې ۹۰ درجې یې د استوا د کرښې په شمال کې او ۹۰ درجې یې د استوا د کرښې سویل خواته پرتې دي.

– هغه کرښې چې شمالي او سویلي قطبونه سره نښلوي د طول البلد په نامه یادېږي. هغه کرښه چې د لندن له ګرینویچ څخه تېرېږي د طول البلد صفر درجه منل شوې چې ۱۸۰ درجې یې ختیځ خواته د ختیځو طول البلدونو په نامه او ۱۸۰ درجې یې د لوېدیځ په لور د لوېدیځو طول البلدونو په نامه یادېږي.

# دویم څپرکی

# د افغانستان جغرافیه




**ددې څپرکي له لوستلو څخه وروسته له زده کوونکو څخه هیله کېږي چې:**

- د هېواد پر طبیعي جوړښت پوه شي.
- د افغانستان له اقلیم سره بلد شي.
- د افغانستان د مشهورو غرونو او سیندونو په هکله معلومات ولري.
- د افغانستان د جهیلونو په هکله معلومات ولري.
- د افغانستان له نفوسو او بشري قواوو سره بلد شي.
- د افغانستان د خلکو له ژبو او دین سره بلد شي.
- د افغانستان له اقتصادي جغرافیې سره بلد شي.
- صنعتي او طبي بوټو سره آشنا شي.
- د مالدارۍ او څارویو له روزنې سره بلد شي.
- د ځنګلونو او څرځایونو سره چې ملي شتمني ده، بلد شي.
- د کاني زېرمو په هکله معلومات ترلاسه کړي.
- د سوداګرۍ له اهمیت څخه خبر شي.

**له زده کوونکو څخه هیله کېږي چې ددې څپرکي په لوستلو سره په لاندې مهارتي هدفونو لاس بری پیدا کړي.**

- په افغانستان کې د نفوسو د خصوصیاتو تحلیلول.
- له یوې سیمې څخه بلې سیمې ته د وګړو د ګڼوالي د توپیر تشریح.
- د نقشې پرمخ د کاني شتمنیو وېش.

# د افغانستان موقعیت او څلورخواوې




د ځمکې د کرې مدل ته وګورئ چې افغانستان د آسیا د لویې وچې او نړۍ په کومه برخه کې پروت دی؟

افغانستان غرنی هېواد دی چې د آسیا د لویې وچې په سویل کې په شمالي نیمه کره (د استوا له کرښې نه شمال خواته) او په ختیځه نیمه کره کې ( د لندن د ګرینویچ له کرښې څخه ختیځ خواته) پروت دی. د افغانستان پراخوالی (٦٥٢٠٠٠) کیلومتره مربع دی. زموږ هېواد افغانستان له څلورو خواوو څخه وچې چاپېر کړی دی او آزاد سمندر ته لار نه لري. د عربو سمندرګي ته یې نژدې واټن ٤٠٠ کیلومترو ته رسیږي.

د آسیا سیاسی نقشه




د افغانستان شمال خواته د منځنۍ آسیا د

تاجکستان، ازبکستان او ترکمنستان جمهوریتونه پراته دي. زموږ د هیواد سویلي او ختیځې پولې (سرحدونه) د پاکستان له اسلامي جمهوریت سره د ډیورند د تحمیلي کرښې په واسطه په نښه شوي چې د افغانستان خلکو هغه په رسمیت نه دي پېژندلې. زموږ د هېواد لوېدیځ خواته د ایران اسلامي جمهوریت پروت دی. زموږ هېواد شمال ختیځ لورته په یوه لږه برخه کې د چین له جمهوریت سره ګډه پوله لري. د منځنۍ آسیا هېوادونه هم آزاد سمندرته لار نه لري. له دې کبله د هغوی سوداګري د آسیا له سویلي هېوادونوسره د افغانستان له لارې ترسره کېږي چې دا موضوع د افغانستان موقعیت ته ښه اهمیت ورکوي.

### د ټولګي فعالیت

د نقشې له مخې پیدا کړئ چې افغانستان له کومو هېوادونو سره ډېره ګډه سرحدي پوله لري، په ترتیب سره یې له اوږدې پولې لرونکو څخه پیل کړئ.

- پاکستان
- 
- 

### پوښتنې

۱ـ افغانستان د آسیا د لویې وچې په کومه برخه کې پروت دی؟
۲ـ افغانستان د نړۍ په کومه برخه کې پروت دی؟
۳ـ د افغانستان پراخوالی څومره دی؟
٤ـ له افغانستان څخه وچه چاپېره ده او که سمندر؟ نژدې واټن یې له کوم سمندرګي سره او څومره دی؟
٥ـ د افغانستان شمال خواته کوم هېوادونه پراته دي؟ د هریوه نوم واخلئ اوپه نقشه کې یې وښیئ.
٦ـ افغانستان د شمال ختیځ له خوا څخه کوم هېواد سره ګډه پوله لري؟ په نقشه کې یې وښیئ.

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

د افغانستان ګاونډي اسلامي هېوادونه د هغو له لوري سره په خپلو کتابچو کې لیست کړئ او د جغرافیې په راتلونکي درسي ساعت کې یې ولولئ.

# طبیعي جغرافیه




د افغانستان طبیعي نقشه

د افغانستان د طبیعي حالت په هکله څه پوهېږئ؟

نقشې ته ځیر شئ، زموږ د هېواد $\frac{۱}{۳}$ برخه غرنی ده، نورې برخې یې هوارې دي. دهندوکش د غرونو لړۍ، د بابا غر، سفید کوه او سیاه کوه د تېربند ترکستان، او د سپین غر او تور غر د غرو لړۍ لوړې سیمې جوړوي. دا غرونه د هېواد په منځنیو، شمال ختیځو او ختیځو سیمو کې پراته دي. په لوړو غرنیو سیمو کې ژمی ډېره سړه هوا لري او زیات اورښت یې د واورې په بڼه وي. واورې په غرونو کې زېرمه کېږي او د پسرلي او دوبي په موسمونو کې د هوارو سیمو لپاره د سیندونو د اوبو اصلي سرچینه جوړوي.

دافغانستان ددې غرونو له لړیو څخه زیات سیندونه سرچینه اخلي چې خلك یې له اوبو څخه د څښلو لپاره او د خپلو ځمکو د خړوبولو په برخه کې ګټه اخلي. د افغانستان پر ځینو سیندونو د برېښنا بندونه جوړ شوي دي، له یوې خوا له نوموړو بندونو څخه په ګټې اخیستنې سره د هغو له برېښنا څخه ګټه اخیستل کېږي او له بلې خوا د هغو د اوبو له زېرمو څخه د کرنیزو

ځمکو په خړوبولو کې ګټه اخیستل کېږي.

## لوړې سطحې

هوارې ځمکې چې د غرونو په منځ کې پرتې دي او دخپلو شاوخوا سیمو په پرتله لوړې وي د لوړې سطحې په نامه یادیږي. زموږ د هیواد مشهورې لوړې سطحې د پامیر او واخان سطحې او مرکزي لوړې سطحې دي.

د پامیر لوړه سطحه د آسیا د لویې وچې په منځنۍ برخه کې پرته ده چې لوړ والی یې د سمندر له سطحې څخه د ٦٠٠٠ او ٧٠٠٠ مترو تر منځ دی او د نړۍ د بام په نامه شهرت لري. د دې لوړې برخې یوه برخه د افغانستان په خاوره کې پرته ده.

## دښتې

د هیواد سویل لویدیځه برخه چې توده او وچه هوا لري، اوربښت یې کم دی. په دې سیمو کې د مارګو، سیستان او بکوا دښتې پرتې دي. زموږ د هیواد نورې دښتې عبارت دي له: همدم آب څخه په هرات کې، چمتله په کابل کې، کیله ګۍ په بغلان کې، ګمبیري په لغمان کې، د سقاوې دښته په لوګر کې، د توپ دښته په وردګو کې او د لیلي دښته په جوزجان کې.

### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په دریو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې دافغانستان د غرونو او د هغو د موقعیت او د غزیدو د لوري په هکله، دویمه ډله دې د افغانستان د لوړو سطحو په هکله او دریمه ډله دې د افغانستان د دښتو په هکله په خپل منځ کې سره بحث وکړي او د هرې ډلې استازی دې خپله موضوع د ټولګي تر مخ بیان کړي.

### پوښتنې

۱ـ دافغانستان د ډیرو مشهورو غرونو نومونه واخلئ.
۲ـ لوړې سطحې یعنې څه؟ معلومات ورکړئ.
۳ـ د هیواد د لوړو سطحو نومونه واخلئ.
٤ـ ډیره لوړه سطحه څه نومیږي او څومره لوړوالی لري؟
٥ـ د هیواد د مهمو دښتو نومونه واخلئ.

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

د خپلې سیمې د غرونو، سیندونو او دښتو نومونه واخلئ او د جغرافیې په راتلونکي درسي ساعت کې یې بیان کړئ.

# د افغانستان د اقليم په اړه څه پوهیږئ؟



د افغانستان اقليمي نقشه د عرض البلد له کرښو سره

د اقليم کلمه لاتيني ريښه لري، له Klima څخه اخيستل شوې ده چې د لمر د وړانګو د ميلان معنا ورکوي. د لمر د وړانګو ميلان د ځمکې د مخ په بېلو بېلو برخو کې توپير کوي. اقليم د (۳۰) کلونو په موده کې د يوې سيمې د هوا د حالاتو له منځنۍ اندازې څخه عبارت دی چې په يوه ټاکلي وخت او ځای کې بېلې بېلې ځانګړنې غوره کوي. افغانستان د جغرافيايي موقعيت او طبيعي جوړښت له امله په شپږو لاندې اقليمي سيمو وېشل شوی دی:

صحرايي سيمې



## ۱- صحرايي اقليم

د هېواد سويل لوېديځې سيمې، لکه: ګرشک، نيمروز او د فراه سويلي برخې صحرايي اقليم لري.په دې سيمو کې

اوربښت لږ او په ژمي کې واوره نه وريږي. زياته تودوخه او لږ اوربښت ددې سيمې له ځانګړنو څخه دي. د شپې او ورځې تر منځ يې د هوا د تودوخې توپير زيات دی. شپې يې ډېرې سړې او د ورځې هوا يې ډېره توده وي. د مارګو، بکوا، خاشرود او سيستان دښتې په دې سيمو کې پرتې دي. په دې برخو کې اغزي لرونکي ډول، ډول بوټي چې د وچې هوا او لنده بل د لږوالي په مقابل کې مقاومت لري، شنه کيږي.

## ۲- غرنی اقليم

لوړوالی د ځمکې د مخ د اقليم په بدلون کې ډېره اغېزه لري چې د غرني سوړ اقليم سبب کېږي. د هوا تودوالی په هرو زرو مترو کې د شپږو درجو په شاوخوا کې کميږي او د واورې او باران د اوربښت کچه زياتيږي، نو له دې کبله په لوړو غرنيو برخو کې له سړې هوا سره مخامخ کېږو. ډېر اوربښت په دغو سيمو کې د واورې په شکل وي. دغه واورې په غرونو کې زېرمه کېږي او د سيندونو اصلي سرچينه جوړوي. د هندوکش او سالنګونو د منځنۍ برخې آب و هوا د دې راز اقليم بيلګه ده.

## ۳- مديترانه يي اقليم

مديترانه يي ونې



د مديترانه يي اقليمي سيمه ډېر تود او وچ دوبی لري. اوربښت يې ډېر وختونه په ژمي کې د باران په توګه وي. وريجې، ګني او د ستروس د کورنۍ مېوې په هغې کې وده کوي. د ننګرهار او لغمان ولايتونه مديترانه يي اقليم لري.

## ٤- د مونسون اقليم

د پکتيا، خوست او ننګرهار د ولايتونو ځينې سيمې مونسوني اقليم لري. په دې سيمو کې په دوبي کې باران اوري. ددې سيمو لنده هوا د لمنځې، څېړۍ، ځنغوزېو او قهوې د ونو د ودې لپاره ډېره برابره او

مناسبه ده. زمورږ د هېواد ډېر طبيعي ځنګلونه په همدې سيمو کې دي.

### ۵- ستپی (واښه لرونکی) اقليم

اوربښت په دې سيمو کې زياتره په ژمي کې کېږي. په دې سيمو کې بوټي ښه وده کوي. دا سيمې د کرنې او د څارويو روزنې ته ډېرې مناسبې دي. په دې سيمو کې د بغلان، کندز، فارياب، پروان، غزني، کاپيسا، کابل او هرات ولايتونه شامل دي.

د استپی بوټو انځور



### ٦- غرنی (الپي) توندرا اقليم

لوړې برخې چې د ځنګلونو او ونو ساحه پکې پای ته رسيږي او نباتات پکې د ورو بوټو او واښو په بڼه شنه کېږي د توندرا د اقليم سيمه جوړوي. په دې سيمو کې واوره زياته اوري. ژمی يې ډېر سوړ او اوږد او دوبی يې معتدل او لنډ وي. د هوا د ډېر سړښت له امله پکې ونې نه شنې کېږي. په بدخشان کې د پامير سيمه، د هندوکش لوړې برخې او د غزني ناور په دغه اقليم کې راځي.



## د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په دریو ډلو وویشل شي. لومړۍ ډله دې د اقلیم دتعریف او صحرایي اقلیم په اړه، دویمه ډله دې د غرني اقلیم او مدیترانه یي اقلیم په اړه، دریمه ډله دې د مونسوني اقلیم، ستپي اقلیم او الپي تونداراقلیم په اړه سره بحث وکړي او هره ډله دې خپله موضوع د ټولګي په مخ کې تشریح کړي.



## پوښتنې

۱ـ اقلیم تعریف کړئ.

۲ـ د افغانستان دغه لاندې اقلیمي جدول په خپلو کتابچو کې بشپړ کړئ.

| د اقلیم نوم | ځانګړنې | نباتي پوښښ |
|---|---|---|
| صحرایي اقلیم | | |
| | | مختلف نباتي پوښښ |
| مونسوني اقلیم | | |
| | اوربښت په ژمي کې | د ستروس د کورنۍ میوې |



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

ستاسو د استوګنې سیمه کوم ډول اقلیم لري. په هکله یې په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکئ او د جغرافیې په راتلونکي ساعت کې یې خپلو ټولګیوالو ته ولولئ.

# غرونه




د افغانستان غرونه

د افغانستان غرونه موږ ته څه ګټې لري؟

افغانستان غرنی هېواد دی چې کابو $\frac{1}{3}$ برخه خاوره يې غرونو نيولې ده. دا غرونه د افغانستان په منځنيو او ختيځو برخو کې پراته دي. زموږ د وطن ځينې غرونه په ځنګلونو پوښل شوي دي. زموږ د هيواد په لوړو غرونو کې دايمي واورې شته، دا واورې د کال په توده هوا کې ويلې کېږي او د سيندونو سرچينې جوړوي.

که په افغانستان کې دا لوړ غرونه نه واى، زموږ هېواد به په يوې بې اوبو او بې بوټو وچو صحراوو بدل شوی وای سربيره پر دې زموږ د هېواد په غرونو کې ډېرې کاني زېرمې، لکه: اوسپنه، مس، سرپ او قيمتي ډبرې، لکه: ياقوت، لاجورد، زمرد او داسې نورې شته دي. له همدې کبله غرونه د افغانستان طبيعي شتمني شمېرل کېږي. د غرونو موقعيت د يوې سيمې د هوا په حالت کې هم زياته اغېزه لري. د مثال په توګه: د ننګرهار په ولايت کې سپين غر له ختيځ نه د لوېديځ په لوري پروت دی چې په هغه سيمه کې د هند د سمندر له خوا څخه د مونسوني لمدې هوا د راتلو مخه نيسي، ځکه نو يوازې د سپين غره په لوړو څوکو کې اورښت د واورې په شکل وي، خو د دې ولايت په هوارو برخو کې اورښت کم او د باران په ډول وي. لوړې غرنۍ سيمې د ټيټو برخو په نسبت سړه هوا لري. غرونه له پوځي اړخه هم د اهميت وړ دي.

## د افغانستان مهم غرونه

### ۱ ـ هندوکش

هندوکش د افغانستان د ډېرو لويو غرونو له ډلې څخه دی، چې د افغانستان له شمال ختيځ کوچني پامير څخه پيل او د سويل لوېديځ په لور د باميان تر درې پورې غځېدلی دی. د دې غرونو لړۍ په مرکزي برخه کې پراخه سيمه نيولې ده. هندوکش د ښې مطالعې لپاره په دوو برخو وېشل شوی: ختيځ هندوکش او لوېديځ هندوکش.

ختيځ هندوکش د بدخشان له زيباک درې څخه د خاواک تر کنډو پورې غزېدلی دی. ختيځ هندوکش زيات لوړوالی لري. ډېره لوړه څوکه يې تيراجمير نوميږي چې په چترال کې پرته ده او (۷۷۵۰) متره لوړوالی لري. ډېره لوړه څوکه يې د افغانستان په خاوره کې نوشاخ نوميږي، چې د سمندر له سطحې څخه (۷٤۸۵) متره لوړوالی لري.

لوېديځ هندوکش د خاواک له کنډو څخه د باميانو تر درې پورې غځېدلی دی. لوړوالی يې له



ختیځ هندوکش نه لږ دی. له دې کبله یې له کنډوونو تگ راتگ آسانه دی. د سالنگ کنډو د (۳٤۰۰) مترو او د شیبر کنډو د (۳۲۰۰) مترو په لوړوالی سره د لوېدیځ هندوکش له مشهورو کنډوونو څخه دی، چې د خلکو د تگ او راتگ لاره ده، له شمال څخه سویل ته او د هغې برعکس.

### ۲. د بابا غر

د بابا غر د افغانستان په منځنی برخه کې له ختیځ څخه لوېدیځ ته د حاجیگک له کنډو نه پیل شوی د حصار د غره تر سویل پورې غځېدلی دی. لوړه څوکه یې شاه فولادي نومیږي چې د سمندر له سطحې څخه (۵۱٤۰) متره لوړه پرته ده. ددې غره لوړې څوکې زیاتره له واورو ډکې وي. په شمالي او سویلي لمنو کې یې د څارویو د روزنې لپاره ښه څر ځایونه شته دي.

د بابا غر



### ۳-سپین غر

سپین غر د افغانستان په ختیځ کې پروت دی. لوړه څوکه یې سیکارام ده چې د سمندر له سطحې څخه (٤٧٥٥) متره لوړه ده. شمالي او سویلي لمنې یې له طبیعي پراخو ځنګلونو څخه ډکې دي. د خیبر نامتو دره چې له تاریخي او ارتباطي پلوه د اهمیت وړ ده، ددې غره په لړۍ کې پرته ده.

افغانستان زیات غرونه لري. نور مهم غرونه یې دادي: فیروزکوه یا سفیدکوه، سیاه کوه، ګل کوه، د تیربند ترکستان، د سلیمان غرونه، چګایي، تورغر او نور.

#### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په دریو ډلو وویشل شي، د لاندې موضوعاتو په اړه دې بحث وکړي او موضوع دې د ټولګي ترمخ شرح کړي. لومړۍ ډله دې د افغانستان نقشه رسم کړي، د بابا غر دې پکې وښيي او د هغه په اړه دې معلومات ورکړي. دویمه ډله دې د افغانستان نقشه رسم کړي سپین غر دې پکې وښيي او د هغه په اړه دې معلومات ورکړي. دریمه ډله دې د افغانستان نقشه رسم کړي، د هندوکش غر دې پکې وښيي او د هغه په اړه دې معلومات ورکړي.

#### پوښتنې

۱ـ د افغانستان غرونه زیاتره په کومه سیمه کې پراته دي؟
۲ـ ولې په لوړو غرونو کې دایمي واورې شته دي؟
۳ـ د هندوکش غر زموږ د هېواد په کومه برخه کې پروت دی؟
٤ـ د بابا غر د هېواد په کومه برخه کې پروت دی؟
٥ـ سپین غر د هېواد په کومه برخه کې موقعیت لري؟
٦ـ د افغانستان د غرونو اهمیت بیان کړئ.

#### له ټولګي څخه بهر فعالیت

په خپلو کتابچو کې د افغانستان نقشه رسم کړئ او مهم غرونه د کتاب د نقشې له مخې په هغې کې په نښه کړئ.

# د افغانستان سیندونه د کرنې او انرژۍ د تولید وسیله




د افغانستان سیندونه او جهیلونه

آیا رواني اوبه او سیندونه په یوه سیمه کې په مستقیمه توګه د خلکو پر فعالیتونو اغېزه لري؟

د غرونو په بحث کې مو ولوستل چې د هېواد په ډېرو لوړو غرونو کې دایمي واورې شته. دا واورې د کال په اوړدو کې اوبه کېږي او د سیندونو د اوبو سرچینه جوړوي. سیندونه له سرچینې لږې اوبه لري، د لارې په اوږدو کې د څو ناوونو اوبه ور سره یوځای کېږي او سیند ورو ورو لوېږي. څرنګه چې د افغانستان ټولو سیندونو له لوړو غرونو څخه سرچینه اخستې ده، نو په هغو سیمو کې چې د سیندونو ځوږ زیات وي. په زیاته اندازه د اوبو د برېښنا انرژۍ د تولید او قوت درلودونکي وي. او د هر یوه سیند په اوږدو کې په ځینو برخو کې د څو کیلومترو په اوږدو کې د څو برېښنا بندونو د جوړښت امکان شته دی. خو د سیندونو له سرچینې څخه تر خولې (مصب) پورې د زیات ځوږ او ډېرین بستر له امله د افغانستان زیاتره سیندونه د بېړۍ چلولو وړ نه دي. همدارنګه د سیندونو له اوبو څخه په کرنه او کب نیولو کې هم ګټه اخیستل کېږي. لوی سیندونه عموماً مرستیالان او څانګې لري. د سیندونو څانګې د سیند په ښي او کیڼو غاړو کې بهیږي، په پای کې یې اوبه د لویو سیندونو

سره یوځای کېږي. له لویو سیندونو سره ددې کوچنیو سیندونو د اوبو یوځای کېدل د سیندونو د سیستم په نامه یادیږي.

د جغرافیې پوهانو د افغانستان روانې اوبه په پنځو اوبه لرونکو حوزو وېشلې دي چې عبارت دي له:

لومړی ـ د کابل د حوزې سیندونه

دویم ـ د آمو د حوزې سیندونه

دریم ـ د هلمند د حوزې سیندونه

څلورم ـ د هریرود د حوزې سیندونه

پنځم ـ د ترلو حوزو سیندونه

## لومړی ـ د کابل د حوزې سیندونه

د دې حوزې ډېر لوی سیند د کابل سیند دی چې د پغمان د غره د اونۍ له کنډو څخه سرچینه اخلي، له لوېدیځ څخه د ختیځ په لور بهیږي. د کابل ښار، لغمان او ننگرهار ولایتونو څخه تېرېږي او په اټک کې د سند له سیند سره یوځای کېږي. د کابل د سیند مرستیالان دادي: د لوگر، پنجشیر،

د نغلو د برېښنا بند



لغمان (اليشنگ او الينگار) او د کونړ سيندونه. د کابل د سيند له اوبو څخه د کرنې د ځمکو په خړوبولو کې ګټه اخيستل کېږي. د ماهيپر، نغلو، سروبي او درونټې د برېښنا بندونه د کابل د سيند په اوږدو کې جوړ شوي دي چې د هغو له برېښنا څخه د کابل، جلال آباد او لغمان د ښارونو په روښانولو کې ګټه اخيستل کېږي.



د کابل سيند او د ښار مرکز

**دويم ـ د آمو د حوزې سيندونه**

د آمو سيند چې يونانيانو د اکسوس او عربانو د جيجون په نوم ياد کړی دی، ددې سيمې ډېر لوی سيند دی چې له کوچني پامير څخه سرچينه اخلي او د ارال په جهيل کې توييږي. دا سيند د زرقول څخه تر خماب پورې د (۱۲۰۰) کيلومترو په اوږدوالي د افغانستان او تاجکستان، ازبکستان او ترکمنستان د جمهوريتونو ترمنځ طبيعي پوله جوړوي. مرستيالان يې د افغانستان له خاورې څخه د کندز او کوکچې سيندونه دي.

د آمو د سيند له اوبو څخه له دې کبله چې سيند ټيټ او د افغانستان په خاوره کې د سيند بهير ته نژدې ځمکې لوړې پرتې دي، ګټه نه ترې اخيستل کېږي.

**د ټولګي فعاليت**

زده کوونکي دې په څلورو ډلو ووېشل شي. دوې ډلې دې د آمو د حوزې پر سيندونو او دوې ډلې دې د کابل د سيند د حوزې پر سيندونو بېل بېل بحث وکړي او د هرې ډلې استازي دې خپله موضوع د ټولګي تر مخ تشريح کړي.

**پوښتنې**

۱ـ سيندونه له څه ډول غرونو څخه سرچينه اخلي؟
۲ـ آيا د سيند اوبه ناڅاپه زياتېږي؟
۳ـ له سيند څخه څه ګټه اخلو؟
٤ـ ولې د افغانستان سيندونه د بېړۍ چلولو وړ نه دي؟
٥ـ په هغو سيموکې چې سيند ډېر ځوړ لري، ترې څه ګټه اخيستلای شو؟
٦ـ د افغانستان د اوبه لرونکو حوزو نومونه واخلئ.
۷ـ د آمو سيند د افغانستان او کومو هېوادونو ترمنځ طبيعي پوله جوړوي؟
۸ـ د کابل سيند له کوم غره څخه سر چينه اخيستې او د بهيدو لوری يې کوم لوري ته دی؟
۹ـ د کابل د سيند د مرستيالانو نومونه واخلئ.
۱۰ـ د کابل د سيند له اوبو څخه څه ګټه اخيستل کېږي؟

**له ټولګي څخه بهر فعاليت**

د خپلې سيمې د سيندونو د اهميت په باره کې معلومات راټول کړئ او په ټولګي کې يې وړاندې کړئ.

# د افغانستان د نورو حوزو سيندونه




د هلمند او د هغه د مرستيالانو نقشه

آيا د افغانستان له ډېر اوږده سيند سره بلد ياست؟

## دريم ـ د هلمند د حوزې سيندونه

د افغانستان ډېر لوی او اوږد سيند د هلمند سيند دی چې د پغمان د غره دوانۍ د کوتل له لوېديځو لمنو څخه سرچينه اخلي او د سويل لوېديځ په لور بهيږي. اوږدوالی يې (۱٤۰۰) کيلومتره دی. مرستيالان يې د موسیٰ کلا، ارغنداب، ترنک او ارغستان سيندونه دي. ځينې سيندونه له هلمند سره نه يوځای کېږي او د سيستان په جهيل کې توييږي چې هغه له: خاشرود، فراه رود، ادرسکن يا هاروت څخه عبارت دي. د هلمند د سيند تر څنګ د ګرشک په سيمه کې د بغرا نهر جوړ شوی دی. دا نهر د نادعلي سيمې او هغه دښتې چې د بُست کلا په لوېديځ کې پرتې دي خړوبوي.

## څلورم ـ د هريرود د حوزې سيندونه

د دې حوزې ډېر مهم سيند هريرود دی چې د بابا د غره له لوېديځ څخه سرچينه اخلي او له ختيځ څخه د لوېديځ لور ته بهيږي. دا سيند له اسلام کلا څخه تر ذوالفقار پورې د افغانستان او

ایران ترمنځ طبیعي پوله جوړوي. هریرود په خپله تګ لاره کې هرات ولایت سمسوروي. ددې حوزې بل مهم سیند د مرغاب سیند دی.

### پنځم ـ د تړلو حوزو سیندونه

هغه سیندونه چې له لوړو غرونو نه سرچینه اخلي او په یوې تړلې حوزې کې د افغانستان په دننه کې بهیږي او د بل سیند سره نه یوځای کیږي، د تړلو حوزو د سیندونو په نامه یادیږي، لکه: د غزني سیند چې د غزني له ښار څخه له تېریدو وروسته د غزني په ولاړو اوبو کې تویږي. د دې حوزې نور سیندونه له: بلخاب سیند، سمنګان سیند، اندخوی سیند او د قیصار له سیند څخه عبارت دي.

### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په دریو ډلو وویشل شي، هره ډله دې د لاندې یوې موضوع په هکله سره بحث وکړي او د هرې ډلې استازی دې خپله موضوع د ټولګي ترمخ بیان کړي.

- د هلمند د حوزې سیندونه
- د هریرود د حوزې سیندونه
- د تړلو حوزو سیندونه

### پوښتنې

١- د افغانستان ډېر اوږد سیند کوم دی او څومره اوږدوالی لري؟
٢ـ د هلمند د سیند د مرستیالانو نومونه واخلئ.
٣ـ د هغو سیندونو نومونه واخلئ چې په مستقله توګه بهیږي او د سیستان په جهیل کې تویږي؟
٤ـ د هلمند له سیند څخه تر اوسه پورې څه ګټې اخیستل شوي دي؟
٥ـ هریرود له کوم غره څخه سرچینه اخیستې او کوم ولایت سمسوروي؟
٦ـ هریرود د کومو هېوادونو ترمنځ طبیعي پوله جوړوي؟ د هغو هېوادونو نومونه واخلئ.

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

د پرانیستو حوزو سیندونه، لکه: هلمند او نور د تړلو حوزو له سیندونو سره پرتله کړئ او خپل معلومات ټولګي ته وړاندې کړئ.

شپاړسم لوست

# د افغانستان د جهیلونو په اړه څه پوهېږئ؟



آیا تر اوسه په خپل چاپیریال کې له ولاړو اوبو سره چې له څلورو خواوو څخه پر وچه چاپیره شوي وي، مخامخ شوی یاست او پوهېږئ چې هغو ته څه وایي؟

هغه ولاړې اوبه چې څلورو خواوو ته یې وچه وي د جهیل په نامه یادېږي. زموږ هېواد افغانستان په ځینو برخو کې تړلې حوزې لري چې د جهیلونو د رامنځ ته کېدو سبب شوي دي. د مساحت له مخې داجهیلونه ځینې کوچني او ځینې لوی دي. یو شمېر جهیلونه په لوړو سیمو کې له یخچالي اوبو څخه منځ ته راغلي او ځینې په هوارو سیمو کې د سیمه ییزو سیندونو د اوبو له تویېدو څخه جوړ شوي دي او په بېلو بېلو نومونو، لکه: هامون، کول، ولاړې اوبه او یا جهیل په نامه یادېږي.

### د سیستان هامون

د هلمند هامون، د صابري هامون، د پوزک هامون اوګود زیره د هېواد په سویل لوېدیځه برخه کې د نیمروز په ولایت کې د سیمه ییزو سیندونو اوبه جوړوي. ددې هامونونو غاړې د سیندونو د اوبو د زیاتېدو له امله توپیر کوي.

د هلمند هامون د افغانستان او ایران ترمنځ یوه برخه طبیعي پوله جوړوي. لکه چې دارنګه یوه

برخه چې د افغانستان او بله برخه یې په ایران پورې اړه لري.

### د شیوا جهیل

د شیوا جهیل د بدخشان په ولایت کې پروت دی. اوبه یې پاکې او رڼې دي، په ژمي کې یې مخ کنګل کېږي. د شیوا جهیل د سمندر له سطحې څخه (۳۰۵۰) متره لوړوالی لري.

### د زرقول جهیل

د زرکول یا زرقول جهیل د پامیر په لوړه سطح کې د افغانستان او تاجکستان د پولې تر منځ پروت دی. دا جهیل د آمو او پامیر د سیندونو لومړنی سرچینه جوړوي. د شمالي غاړې اوږدوالی یې شپږ کیلومتره، سویلي غاړې یې لس کیلومتره او سور یې څلورنیم کیلومتره دی، دا جهیل هم یخچالي دی. د کال په ډېرو وختو کې یې اوبه منجمدې او کنګل وي.



## د چقمقتین جهیل

دا جهیل هم په پامیر کې پروت دی. له دې جهیل څخه د واخان سیند سرچینه اخلي. د دې جهیل اوږدوالی ۱۷ کیلومتره او سور یې دوه نیم کیلومتره دی. شاوخوا یې شنه او سمسوره ده، د قرغز خلکو د څارویو لپاره یې څر ځایونه جوړ کړي دي.

## د غزني ولاړې اوبه

د غزني ولایت سویل خواته موقعیت لري. د غزني سیند پکې تویېږي. د دې جهیل اوبه ښه خوند نه لري.

د هرات مالګین جهیل د افغانستان او ایران د پولې تر منځ پروت دی. اوبه یې مالګینې دي او له هغه څخه مالګه لاس ته راوړي.

له پورتنیو جهیلونو پرته، یو شمېر طبیعي بندونه چې سیمه ییز جهیلونه یې جوړ کړي دي، هم زموږ په هېواد کې شته دي چې ډېرې ښکلې او زړه وړونکې منظرې جوړوي، لکه: د بامیانو په ولایت کې د (هیبت، پنیر، جداسل، پودینه او ذولفقار بندونه) چې دا ټول د بند امیر په نامه یادېږي.



### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په څلورو ډلو وویشل شي، لومړۍ ډله دې د جهیلونو او د هغو د منځ ته راتګ، دویمه ډله دې د سیستان د هامون او د غزني د ولاړو اوبو، دریمه ډله دې د بدخشان د ولایت د جهیلونو، زرقول او چقمقتین او څلورمه ډله دې د امیر بند په هکله سره بحث وکړي او د بحث پایله دې د ټولګي په مخ کې بیان کړي.



### پوښتنې

۱ـ جهیل تعریف کړئ؟
۲ـ د لوړو او ټیټو برخو جهیلونه سره څه توپیر لري؟
۳ـ جهیلونه په کومو نومونو او اصطلاحاتو یادیږي؟
٤ـ د هلمند هامون د کومو هیوادونو ترمنځ یوه برخه پوله جوړه کړې ده؟
٥ـ د زرقول جهیل د افغانستان په کومه برخه کې پروت دی؟
٦ـ کوم سیند د زرقول له جهیل څخه سرچینه اخلي؟
۷ـ د امیر بند د افغانستان په کومه برخه کې پروت دی؟



### له ټولګي څخه بهر فعالیت

هغه جهیلونه چې تاسې لیدلي دي، نومونه یې واخلئ، د هغو په هکله خو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او د جغرافیې په راتلونکي درسي ساعت کې یې په ټولګي کې خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړئ.




د جغرافيې علم په بيلابيلو څانګو ويشل کېږي چې د هغو له اصلي څانګو څخه يوه هم بشري جغرافيه ده چې د نفوسو، قومونو، ژبو، دينونو او نورو موضوعاتو په هکله بحث کوي.

## نفوس

افغانستان يو غرنی هېواد دی چې کابو ۳۰ ميليونه وګړي لري. په ۱۳۹۳ لمريز کال کې په افغانستان کې په هر کيلومتر مربع کې د وګړو ګڼوالی په منځنۍ توګه ٤٦ تنه و. د نفوسو وېش د افغانستان په ټولو ځايونو کې يو ډول نه دی، په ختيځو برخو کې د وګړو ګڼوالی زيات او په سويل لوېديځو او منځنيو برخو کې د وګړو ګڼوالی لږ دی. د هېواد اوسېدونکي د بېلابېلو سياسي، اقتصادي او اقليمي عواملو پر اساس له کليو نه د ښارونو په لور مهاجرت کوي چې دا کار په ښارونو کې د خلکو د ګڼوالي سبب شوی دی.

## قومونه

- په افغانستان کې کوم قومونه ژوند کوي؟

زموږ ګران هېواد افغانستان، د افغانستان د اسلامي جمهوري په نامه او هره تبعه يې د افغان په نوم يادېږي. د بشري جغرافيې له نظره افغانستان له بېلوبېلو قومونو، لکه: پښتون، تاجک، هزاره، ازبک، ترکمن، بلوڅ، پشه يان، نورستاني او نورو څخه جوړ شوی دی. پښتانه او تاجکان چې ددې سيمې

له آريايي نژاد څخه دي د هېواد په کابو ټولو برخو کې ژوند کوي. هزاره ګان، ازبکان او ترکمنان هم د افغانستان له نورو توکمونو څخه دي چې زياتره دافغانستان په مرکزي لوړو سطحو او شمالي برخو کې اوسېږي. نورستانيان او پشه يان هم له اصلي قومونو څخه دي چې په ختيځو ولاياتو کې ژوند کوي. بلوڅان هم د دې هېواد له اصلي اوسېدونکو څخه دي چې په بلوڅي ژبه خبرې کوي او د افغانستان په سويل لوېديځ کې ژوند کوي.

**ژبې**

په افغانستان کې له ډېرشو څخه زياتې ژبې او ډېرې لهجې شته دي چې ځينې يې دادي: پښتو، دري، ازبيکي، ترکمني، بلوڅي، پراچي،منجي، واخي، زيباکي، اشکاشمي، پشه يي، نورستاني، تيرايي، جتي، سندي، پنجابي او نورې چې له دې جملې څخه دوې ژبې پښتو او دري چې د هېواد اکثريت وګړي ورسره بلد دي، زموږ د هېواد رسمي ژبې دي. سيمه ييزې ژبې، لکه: ازبکي، ترکمني، بلوڅي، نورستاني او پشه يي په خپلو سيمو کې د دريمې ژبې په توګه رسميت لري.

**دين**

زموږ د هېواد خلک د اسلام د مقدس دين پيروان دي. زموږ اکثريت خلک د حنفي مذهب پيرو دي. د جعفري او اسماعليه د مذهبونو يو شمېر پيروان هم په دې هېواد کې ژوند کوي. يو شمېر هندوان هم په افغانستان کې اوسيږي.

### د ټولګي دننه فعاليت

زده کوونکي دې په څلورو ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د بشري جغرافيې پر يوې موضوع، لکه: نفوس، قومونو، ژبې او د افغانستان د خلکو د دين په هکله سره بحث وکړي او له هرې ډلې څخه دې يوتن موضوع د ټولګي په مخ کې تشريح کړي.

### پوښتنې

۱- د افغانستان په کومو ولايتونو کې د وګړو ګڼوالی زيات او په کومو کې لږ دی؟
۲ـ د افغانستان اتباع په څه نامه يادېږي؟
۳ـ په افغانستان کې د ژبو شمېر څومره دی؟ د څو مهمو ژبو نومونه واخلئ.
٤ـ د افغانستان د رسمي ژبو نومونه واخلئ.
٥ـ په افغانستان کې د کومو دينونو پيروان ژوند کوي؟

### له ټولګي څخه بهر فعاليت

ستاسو په ولايت او د استوګنې په سيمه کې مهاجرت له کلي نه ښار ته زيات دی او که له ښاره کلي ته؟ په خوکرښو کې يې وليکئ اوپه ټولګي کې يې تشريح کړئ.

# د افغانستان اقتصادي جغرافيه



د افغانستان کرنيز فعاليتونه

## آيا پوهيږئ چې کرنه په افغانستان کې څه اهميت لري؟

له انځور څخه مو څه زده کړل؟



د تراکتور په واسطه د ځمکې پستول (يوې کول)

د نباتاتو د غټېدو او ودې لپاره هوا، اوبو، خاورې، لمر او ښې او ډول، ډول سرې ته اړتيا ده، د ځمکې خاوره د نباتاتو تکيه ځای دی او پکی بېلابېل غذايي توکي شته دي. افغانستان داسې هېواد دی چې په سلوکې ۸۵ خلك يې د کرنيزو محصولاتو له لارې ژوند کوي. زموږ په هېواد کې د آريايانو له وخته تر اوسه پورې کرنه په دوديزه او

عنعنوي توگه يوې کول د څارويو په وسيله او د کروندگرو د متو او لاسونو په زور ترسره کيږي.

زموږ د هيواد کرنيز حاصلات غلی دانې، لکه: غنم، وربشې، جوار، وريجې، گدن، لوبيا، نخود، مې، مشنگ، باقلي او داسې نور دي.

## غنم

غنم په کرنيزو ځمکو کې په اوبيز او للمي توگه د مني او پسرلي په موسمونو کې کرل کيږي. د مني غنم په تودو سيمو کې تر (۲۵۰۰) مترو لوړوالي او پسرلني غنم په اوبيز او للمي توگه تر( ۳۳۰۰) مترو لوړوالي پورې کرل کېږي. په سړو سيمو کې د کال يو يا دوه فصله حاصل اخستل کيږي او د تودو برخو په ځينو سيمو کې، لکه: ننگرهار په يو کال کې د يوې کرنيزې ځمکې څخه تر درې فصله هم حاصل اخېستل کېږي.

للمي غنم د کب او وري په مياشتو کې د غونډيو په لمنو او هوارو ځمکو کې کرل کېږي چې د پسرلنيو اورښتونو په وسيله خړوبيږي.

افغانستان ٦٦ ميليونه هکټاره ځمکې لري چې تر اوسه يې يوازې ۳،۳۷ ميليونه هکټاره ځمکه د غنمو کرنې ته ځانگړې شوې ده.

د غنمو کروندې



په (۱۳۸٦) هـ. ل کال کې د غلو ټول تولید ٥،٦ میلیونه ټنه شمېرل شوی، خو د هیواد د وګړو د خوړو لپاره د نورو (٥٢٧) زره ټنو د واردولو اړتیا وه. د کرنې له ماشین آلاتو څخه د ګټې اخیستنې پر اساس په هر هکټار ځمکه کې د غنمو حاصلات (٢،٦) ټنه و او په ١٣٨٦ هـ.ل کال کې په ټول افغانستان کې د غنمو تولید (٤،٥) میلیونه ټنه زیات شوی دی.

## وریجې

ستاسو په نظر د وریجو اهمیت د خلکو د خوراکي توکي په توګه څه دی؟

نرۍ او غټې وریجې چې له غنمو وروسته زموږ د خلکو د خوراکي توکو څخه شمېرل کېږي، په (٢١٤) زره هکټاره ځمکه کې کرل کېږي. د وریجو د بوټي کرل په هغو سیمو کې چې تود اقلیم، لنده هوا او ډېرې اوبه لري، ښه حاصل ورکوي، نو ځکه د بغلان نرۍ باړه وریجې، د کونړ د پشد وریجې، د لغمان نرۍ وریجې، د کندز د خان آباد د سیمو وریجې او د مزارشریف وریجې ډېر شهرت لري.

د وریجو کرونده





## جوار

جوار زموږ د وطن د خلکو بل خوراکي توکی دی چې کرنه يې تر ۲۶۰۰ مترو لوړوالي پورې کيږي او د کرنې ساحه يې د ۵۰۰ زره هکتاره ځمکې په شاوخواکې ده. د جواروکرنه زياتره د پکتيا او ننګرهار په ولايتونوکې کرل کيږي.

د جوارو محصول



### د ټولګي فعاليت

زده کوونکي دې په دريو ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د لاندېنيو فعاليتونو څخه د يوه په هکله پخپل منځ کې بحث او خبرې وکړي او يو تن دې د خپلې ډلې په استازيتوب د خپلو خبرو پايله د ټولګي تر مخ وړاندې کړي.

- د غنمو د کرنې په هکله معلومات ورکړئ.
- په هېواد کې د وريجو د کرنې په هکله معلومات ورکړئ.
- د جوارو د کرنې په هکله معلومات راټول کړئ.



### پوښتنې

۱- د هېواد د غوره کرنيزو محصولاتو نومونه واخلئ.
۲ـ په کوم دليل ويلای شئ چې افغانستان يو کرنيز هېواد دی؟
۳ـ د آبي غنمو او د هغو د کرنې د وخت په هکله څه پوهېږئ؟
٤ـ د للمي غنمو د کرنې په هکله معلومات ورکړئ.
۵ـ په هېواد کې د وريجو د کرنې او ډولونو په هکله څه پوهېږئ؟
٦ـ آبي او للمي غنم سره څه توپير لري؟



### له ټولګي څخه بهر فعاليت

ستاسو په سيمه کې کوم کرنيز محصولات کرل کيږي، خپل معلومات خپلو ټولګيوالوته بيان کړئ.

# طبي او صنعتي نباتات



د پنبې کرونده

آیا پوهېږئ چې په هېواد کې کوم صنعتي نباتات کرل کېږي؟

د افغانستان طبیعي ځانګړنو او جغرافیایي موقعیت ته په پام سره په دې هېواد کې ډېر صنعتي او طبي بوټي وده کوي.

## الف ـ صنعتي بوټي

ستاسو په نظر صنعتي بوټي د هېواد په اقتصاد کې څه اهمیت لري؟

زموږ په هېواد کې صنعتي بوټي له پنبې، چغندرو، ګنیو او نورو څخه عبارت دي.

### ۱- پنبه

پنبه له دوو برخو څخه جوړه ده چې یوه یې مالوچ او بله برخه یې د پنبې دانه ده او د نساجۍ په فابریکو کې یو له بل څخه جلا کېږي. د مالوچو له برخې نه یې د نساجۍ په فابریکو کې هر ډول نخي ټوکران، شطرنجي، جوال او رسۍ جوړوي او همداراز له پنبه دانې څخه یې نباتي غوړي، د کالي مینځلو صابون او د پاتې توکو نه یې حیواني کنجاره جوړوي. له څولسیزو نا آرامیو څخه د مخه زموږ په هېواد کې د بګرامیو، ګلبهار، پلخمري، کندز، مزارشریف، بلخ، هرات، هلمند، کندهار او ننګرهار د نساجۍ فابریکو فعالیت کاوه چې ډول، ډول سپنسین ټوکران یې تولیدول.

د پنبې نبات د ثور په میاشت کې کرل کېږي او د مني په وروستیو کې په لومړۍ، دویمې، دریمې او څلورمې درجې د لاس په وسیله راټول او سورت کېږي او د دوبي په توده هوا کې ښه حاصل ورکوي. هغه ولایتونه چې پنبه پکې کرل کېږي عبارت دي له: بغلان، کندز، تخار او بدخشان څخه چې د هېواد په سلو کې نوي پنبه تولیدوي. پنبه په سمنګان، بلخ، هرات، هلمند، ننګرهار، لغمان، پروان او کاپیسا ولایتونو کې هم کرل کېږي. د پنبې د مالوچو یوه برخه په کورنیو بازارونو کې پلورل کېږي.

### ۲ـ چغندر

د چغندرو د کرنې لپاره هغه ځمکې مناسبې دي چې آهکي توکي لري او ډېرې پکې نه وي. چې دا رنګه د کښت پراخې سیمې زموږ د هېواد د بغلان او کندز په ولایتونو کې شته. د بغلان د بورې په فابریکې کې له چغندرو څخه بوره او له پاتې برخې څخه یې حیواني کنجاره جوړوي.

### ۳ـ ګني

د ګنیو بوټي په توده او لنده هوا کې چې ډېرې اوبه لري، شنه کېږي. دا بوټي زیاتره د ننګرهار، لغمان او کونړ په ولایتونو کې کرل کېږي چې له هغه څخه ګوړه جوړه وي. د هغه له پاتې برخې څخه د څارویو د خوراک لپاره ګټه اخیستل کېږي. په دې وروستیو وختونو کې د ګنیو قلمې له هند څخه وارد شوي او د کندهار او هلمند په ولایتونو کې هم کرل کېږي.


د ګنیو کرونده

| شمېره | د بوټي نوم | د کښت ساحه په جریب |
|---|---|---|
| ۱ | پنبه | ۲۷۲۸۷۰ |
| ۲ | چغندر | ۲۲۵۹۰ |
| ۳ | ګني | ۱۱۸۴۰ |

**ب ـ طبي بوټي**

له طبي بوټو څخه څه ګټه اخيستل کېږي؟

د طبي بوټو له جملې څخه زعفران، سپېرکۍ، باديان او زيره په کرنيزو ځمکو کې کرل کېږي او نور بوټي، لکه: خوږه وله، هنګه، کاسني، پنيرک، مستار، سپېلني،ختمي، خاکشير، شيرخشت، ګربه خورک، ملنګان، سپيغول، د غره پياز او هوږه او... ټول په خپلسري توګه د غرونو او غونډيو په



لمنو، دښتو، ویالو او د کروندو په څنګ کې شنه کېږي او د شفا ورکوونکو درملو په توګه په یوناني طبابت کې په کورنیو بازارونو کې پلورل کېږي. زعفران، خوږه وله، هنګه، څنګی او ځینې نور طبي بوټي د هېواد د صادراتو مهمه برخه جوړوي.



### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په دریو ډلو ووېشل شي، لومړۍ ډله دې د پنبې او له هغې څخه ګټه اخیستل، دویمه ډله دې د چغندرو او ګنیو او له هغو څخه ګټه اخیستل او دریمه ډله دې د طبي بوټو او له هغو څخه د ګټې اخیستلو په هکله بحث وکړي او یو یو تن دې د خپلې ډلې په استازیتوب د بحث پایلې د ټولګي په مخ کې خپلو ټولګیوالو ته بیان کړي.



### پوښتنې

۱ـ د هغو ولایتونو نوم واخلئ چې پنبه پکې کرل کېږي؟

۲ـ د پنبې له بوټي نه څه ګټه اخیستل کېږي؟

۳ـ له چغندرونه څرنګه ګټه اخیستل کېږي؟

٤ـ ګني په څرنګه آب و هوا کې ډېره ښه وده کوي؟

۵ـ د طبي بوټو نومونه واخلئ.



### له ټولګي څخه بهر فعالیت

ستاسو په سیمه کې څه ډول صنعتي او طبي بوټي وده کوي؟ په خپلو کتابچو کې د هغو نومونه ولیکئ او د جغرافیې په راتلونکي درسي ساعت کې یې خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړئ.

# د افغانستان د مالدارۍ، څرځایونو او ځنګلونو په هکله څه پوهیږئ؟



اهلي څاروي - پسونه

ستاسو په اند په هېواد کې کوم څاروي روزل کېږي؟

## مالداري

مالداري او د حیواناتو ساتل زموږ د هېواد د کورنۍ شتمنۍ یوه مهمه سرچینه جوړوي چې په دوو برخو وېشل کېږي.

**اهلي حیوانات:** اهلي او کورني حیوانات، لکه: پسه، وزه، شیدي ورکوونکې غوا او غوايي، آس، اوښ او کورني چرګان دي.

**پسه:** د پسونو ځینې ډولونه، لکه: هزاره ګي، ترکي او کندهاري مشهور دي. د پسونو لویې او ورې رمې د ځمکه لرونکو او کوچیانو په وسیله ساتل کېږي چې له غوښو، پوستکو، وړیو او کولمو څخه یې ګټه اخیستل کېږي. د پسونو وړۍ، پوستکي او کولمې بهرته هم صادریږي. د ترکي پسونو کولمې ډېر پیرودونکي لري.





اهلي څاروي – غواګاني

د قره قل پسونه د مالدارانو له خوا زیاتره د هېواد په شمالي ولایتونو، لکه: په سمنګانو، بلخ، جوزجان، فارياب، کندز او هرات کې ساتل کېږي. د هغو له پوستکو څخه پوستین او پوستینچه جوړېږي او په هغو هېوادونو چې سړه هوا لري، لکه: کاناډا، روسیه او د امریکا متحده ایالاتو باندې پلورل کېږي. د قره قل د ورې پوستکي د سره، کبودچه او تور تقر په نامه د لوېدیځې اروپا هېوادونو، د امریکا متحده ایالاتو، هند او کاناډا ته صادرېږي.

**غوا**: له غوا څخه لبنیات لاس ته راځي او د هېواد په کلیو کې يې کروندګر او د ځمکې خاوندان ساتي.

**باروړنکي حیوانات**

**آس**: قطغني، مزاري، ترکمني او هراتي آسونه مشهور دي او د سپرلۍ، وزلوبې، نېزې وهلو، بار وړلو، دهقانۍ او د ګاډۍ په چلولو کې ورڅخه ګټه اخیستل کېږي.

**اوښ**: زیاتره يې کوچیان ساتي او شنو سیمو او ځړځایونو ته د کډه کولو په وخت کې له هغو څخه په بار وړلو کې ګټه اخلي او وايي چې اوښ وفا داره څاروی دی، چې ځوز خوري او بار وړي.

**خر**: خر د بار وړلو لپاره پکارېږي. زیاتره يې کروندګر او خرکاران ساتي. د شمالي سیمو خره غښتلي او غټ جسمونه لري.



وحشي حیوانات

**وحشي حیوانات**: زموږ په هېواد کې ۱۲۰ ډوله وحشي او تي لرونکي حیوانات شته چې له هغې ډلې څخه پړانګ، زمری، لېوه، ګیدړ، سورلنډی، سوی او نور دي او همدارنګه ۵۰۰ ډوله بېلابېل الوتونکي هم شته چې له هغې جملې څخه کولاى شو د ډېنګ، زاڼې، باز،

هیلۍ، زرک، دښتي چرگ او د کوچنیو مرغیو ډولونو ته اشاره وکړو.

## څرځایونه

د افغانستان څرځایونو ۳،۲ میلیونه هکټاره ځمکه نیولې ده. د هېواد په شمال، جنوب او ختیځ کې د تودو سیمو چمنونه، د څارویو دایمي څرځایونه جوړوي. د ځنګلونو په ساحه، د هندوکش د غرونو د لړیو په لمنو او ناوونو کې او د افغانستان د شمال په نورو غرونو، مرکزي، ختیځو او سویلي ولایتونو او د غزني د ناور په دښته کې د پسرلي په معتدله او د دوبي په توده هوا کې د مالدارانو او مالداره کوچیانو لپاره ښه څرځایونه شته دي. دا خدای ﷻ ورکړې شتمني مهم حیاتي ارزښت لري.

## ځنګلونه

## ځنګلونه په افغانستان کې څه اهمیت لري؟

ځنګل زموږ په هېواد کې خدایي سوغات، طبیعي او ملي شتمني ده. ځنګلونه په زړه پورې او د لیدو وړ منظرې لري او د وحشي حیواناتو او الوتونکو پټن ځایونه دي. د ځنګلونو د سیمو هوا پاکه، صافه او زړه وړونکې ده.

په افغانستان کې د ځنګلونو ساحه د دوو میلیونو هکټارو په شا او خوا کې ده. زموږ په هېواد کې ځنګلي سیمې د نورستان، ننګرهار، لغمان، کونړ، پکتیا، پکتیکا، بدخشان، بغلان، سمنګانو، سرپل، بادغیس او هرات په ولایتونو کې دي.

ځنګل



د نورستان او کونړ د چارتراشو لرګي د نړۍ په کچه ډېر پېروودونکي لري او د هېواد مهم صادراتي برخه جوړوي. په دې وروستیو وختونو کې دولت کلکه پاملرنه کړې چې د ونو د وهلو او پرې کولو مخه ونیسي او په دې سیمو کې د ډول، ډول نیالګیو کېنول لازم دي.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي، له هرې ډلې څخه دې یو تن پر یوې لاندېنی موضوع خبرې وکړي او له بحث څخه وروسته دې د خپل بحث پایله د ټولګي تر مخ بیان کړي.

- د پسه او غوا په هکله معلومات ورکړئ.
- د وحشي حیواناتو په هکله څه پوهېږئ؟
- د څړ ځایونو په هکله دې معلومات راټول کړي.
- د طبیعي ځنګلونو په هکله دې څرګندونې وکړي.

## پوښتنې

ګرانو زده کوونکو! لاندېنې جدول ته په ځیر سره پاملرنه وکړئ. د کلمو او اصطلاحاتو تر څنګ عدد د الفبا د اړوند توري سره چې توضیحات لري، په خپلو کتابچو کې ونښلوئ. د مثال په توګه د ٤ عدد د الف له توري سره اړیکه لري.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱ | اوبښ | الف | پوستکي یې زموږ د هېواد د صادراتو مهم قلم دی. |
| ۲ | غوا | ب | د څړ ځایونو لپاره له یوه ځایه بل ځای ته کډه کوي. |
| ۳ | کوچیان | ج | له هغه نه په سپرلی، باروړلو، وزلوبې او نیزې وهلو کې ګټه اخلي |
| ۴ | د قره قل پسه | د | وفا داره حیوان دی چې خوزخوري او بار وړي. |
| ۵ | آس | هـ | شنې بوټې لرونکې سیمې دي چې د پسونو، وزو، آسونو، غواګانو او خرو رمې پکې څري. |
| ۶ | ځنګلونه | و | له هغې څخه لبنیات لاسته راځي. |
| ۷ | پسته او بادام | ز | زموږ د هېواد له صادراتي مېوو څخه دي. |
| ۸ | څړ ځایونه | ح | زموږ طبیعي او ملي شتمني ده. |

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

د وحشي حیواناتو نوموونه واخلئ او په خپلو کتابچو کې د هریوه په هکله یو مطلب ولیکئ چې له هغو سره باید څه وشي؟

# کاني منابع




د هېواد په اقتصاد کې له کانونو څخه گټه اخيستل څه اهميت لري؟

افغانستان بېلابېل کانونه، لکه: نفت، طبيعي گاز، د ډبرو سکاره، اوسپنه، مس، سره زر(طلا)، سپين زر، سرپ، جست، مالگه، سلفر، قيمتي ډبرې او د مرمرو ډبرې لري.

## اوسپنه

اوسپنه د ځمکې پرمخ (قشر) کې ډېره په نصواري، سور، تور او ژېړ ليمويي رنگونو پيداکېږي. افغانستان د اوسپنې زيات کانونه لري چې ډېر مهم يې د حاجيگک د اوسپنې کان دی چې د اوسپنې اندازه يې په سلو کې ٦٣ ته رسېږي. همدا رنگه د اوسپنې کانونه په ارزگان، د کندهار په خاکريز، د جوزجان په فيض آباد، پکتيا، هرات او د پروان په جبل السراج کې پيداکېږي. زموږ د هېواد پښگران په لاسي صنايعو کې له اوسپنې څخه د بزگرۍ، ترکاڼۍ او د کورونو د کار وسايل جوړوي.



له مسو ګټه اخیستل

## مس

په لرغونو زمانو کې د وسلو او د ډېرو او لرګیو د وسایلو ځای د مسو سور رنګه نرم فلز ونیو او انسانانو یو ګام د پرمختګ په لور کېښود. د مسو کانونه زموږ د هیواد د لوګر په عینکو، د میدان په کهنه خمار، د کابل په منار چکري، د کندهار په خاکریز، غوربند، بدخشان او د بلخ په ولایتونو کې شته دي. مس د برېښنا او حرارت قوي هادي دي. د هغه له سیمونو څخه د برېښنا په لینونو کې ګټه اخیستل کیږي. زموږ د هېواد مسګران له مسو څخه واړه او غټ مسي دیګونه، چلوصافونه، غوري، آبګردان، ځمڅی، کفګیر، کاچوغې، آفتابه او د لاس مینځلو لګن او نور د اړتیا وړ شیان جوړوي.

## سره زر

د سرو زرو قیمتي فلز، ښه رنګ او په زړه پورې ځلا لري. سره زر زنګ نه اخلي. د پیسو لوی ملاتړي دي. له هغوڅخه ډول، ډول د ښځو ګاڼې جوړوي. سره زر په زابل، کندهار او بدخشان په ولایتونو او د کوکچې د سیند په غاړو کې شته دي.

## سپین زر

سپین زر لکه سره زر زنګ نه نیسي، د برېښنا او تودوخ ې قوي هادي دي. د ګاڼو په توګه ډېر استعمالېږي. کانونه یې په پنجشیر، د هرات په سیم غره او د کندهار په بي بي ګوهر سیمو کې شته دي.



## قیمتي ډبرې

لاجورد د بدخشان ولایت په غرونو کې له لرغونو زمانو څخه پېژندل شوي او له هغو څخه ګټه اخیستل کېده. د بدخشان لاجورد نړیوال شهرت لري او له ۱ څخه تر ۵ درجو وېشل شوي دي. له هېواد څخه بهر ته صادرېږي.

یاقوت، لال، د بدخشان لاجورد او د پنجشیر زمرد نه یوازې د هېواد په قیمتي ډبرو کې، بلکې په سیمه او نړۍ کې شهرت لري او ډېر پېرودونکي لري.

## د سرپو او جستو کانونه

نوموړي کانونه په هزاره جاتو، د هندوکش د غرو په لمنو، بلخ، بدخشان او کندهار کې موندل کېږي.

## د مالګې کانونه

د مالګې کانونه د تخار په تالقانو، د جوزجان په اندخوی، هرات، مزارشریف او د غزني د مقر په سیمو کې شته دي. د ډبرو شین رنګه، شنه بخنه ډبرینه غرنۍ مالګه د هزاره جاتو په سیمو کې پیداکېږي. د تالقانو او د هزاره جاتو له ډبرینې مالګې څخه د خوړو په توکو کې زیاته ګټه اخیستل کېږي.

## سلفر

د سلفر یا ګوګړو کان د (۶۰۰) ټنو په ظرفیت په مزارشریف او یوه اندازه یې د بدخشان په اشکاشم کې تثبیت شوي دي.



## د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په څلورو ډلو وویشل شي، هره ډله دې؟ د افغانستان د کانونو د دوو عنوانو په هکله سره بحث وکړي او پایلې دې په ټولګي کې وړاندې کړي.



## پوښتنې

۱-د لاندې جدول هر یو کان د افغانستان په کومو سیمو کې ډېر دي؟ هر کان په خپلو کتابچو کې د یوې کرښې په وسیله له اړوندې سیمې سره ونښلوئ

| کانونه | جغرافیایي سیمې |
|---|---|
| اوسپنه | ــــ زابل او کندهار |
| مس | هزاره جات او د هندوکش د غرو لمنې |
| سره زر | ــ د ارزګان ولایت او د بامیان حاجیګک |
| سپین زر | د تخار تالقان او د جوزجان اندخوی |
| قیمتي ډبرې | د لوګر عینک، د میدان کهنه خمار، پنجشیر او بدخشان |
| سرپ او جست | ــ مزارشریف |
| مالګه | ـ د بدخشان غرونه |
| سلفر | پنجشیر او د هرات سیم غر |

۲- د اوسپنې د کانونوارزښت او اهمیت بیان کړئ.

۳ـ د مسو د کانونو ډېرې مهمې ځانګړتیاوې بیان کړئ.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

هر زده کوونکی دې د خپلې سیمې د یوه کان په هکله معلومات راټول او د جغرافیې په راتلونکي درسي ساعت کې دې په ټولګي کې وړاندې کړي.

دوه ویشتم لوست

# کاني سون مواد



د ډبرو د سکرو کان

ستاسو په نظر د ډبرو سکرو د پیدایښت منشاء له څه نه ده؟

## د ډبرو سکاره

د ډبرو سکاره نباتي منشاء لري او د رسوبي ډبرو له جملې څخه دي چې د سون موادو په توګه ور څخه کار اخیستل کېږي. زموږ د هېواد د ډبرو سکرو کانونه د هندوکش د غرو له رامنځ ته کېدو سره یوځای منځ ته راغلي دي. په هغه وخت کې د ځنګلونو وېجاړې شوی پاتې شونې د ډبرینو طبقاتو په منځ کې واقع شوي وو او د ډېر فشار او تودوخې له امله په یوې اوږدې مودې کې د هوا د نشتوالي له امله په ډبرو سکرو باندې اوښتي دي چې اوس د سمنګانو په دره صوف، د پلخمري په کرکر، د سیغان درې په اشپشتې، د هرات کرخ او د تخار په بنګي کې يې لويې زېرمې تثبیت شوي دي. د صوف د درې د ډبرو سکرو له کان څخه د امیر عبدالرحمن خان له دورې څخه په ابتدایي شکل سره ګټه اخیستنه پیل شوې ده او زېرمه يې ۷۶ میلیونو ټنو په شاوخوا کې تثبیت شوې ده. د پلخمرې د کرکر د ډبرو د سکرو کان زېرمه چې د کوک ښه جنس لري د څلور میلیونو ټنو په ظرفیت اټکل شوې ده. د هرات د کرخ سکاره د سبزک د غاښې په لمنو کې پراته دي. د بنګي د سکرو زېرمې تر اوسه پورې لاس نه دی خوړلی.

## نفت

له نفتو څخه څه ګټه اخيستل کېږي؟

دا توکي حيواني منشاء لري چې د سمندري حيواناتو له اجسادو څخه چې په يوه اوږده موده کې د ځمکې د رسوبي طبقاتو په منځ کې د زيات فشار لاندې واقع او خوسا شوي په لاس راغلي. د نفتو له چاڼيدو څخه، د الوتکو تېل، ډيزل د ډيزلي ماشينونو د سون لپاره، پټرول د پټرولي ماشينونو د سون لپاره، د خاورو تېل او نور مشتقات يې، لکه: مبلايل، ګريس، وايکم، قير، واسلين او داسې نور لاس ته راځي.

په افغانستان کې د ۱۳۱٤ هـ ش کال څخه تر ۱۳٤۳ هـ ش پورې د طبيعي ګاز او نفتو پلټل شوي او په پايله کې څرګنده شوه چې د تخار د رستاق له ولسوالۍ څخه د ايران تر سرحده د آمو سيند تر ختيځ، لوېديځ او سويل، د ترکستان له تيربند څخه ترشمالي لمنو، لوېديځ هندوکش او د بابا تر غره پورې د نفتو د پيدايښت لپاره سيمې برابرې دي. د نفتو زېرمې په رستاق، تالقان، د ميرعلم په ابدان، شبرغان، ميمنې، هرات او هلمند کې تثبيت شوي دي.



## طبيعي ګاز

طبيعي ګاز په جوزجان ولايت کې د خواجه ګوګردک، يتيم تاق، خواجه برهان اوجر قدوق په سيمو کې شته دي چې پخوا يې را ايستنه د روسانو په وسيله شوې او يوه برخه يې د پايپ لين په وسيله پخواني شوروي ته صادرشوي وو.

د طبيعي ګاز له سوزولو څخه په ژمي کې د کورونو په تودولو، د غذايي موادو په پخولو او د ګازي څراغونو په روښانولو کې ګټه اخيستل کېږي.



### د ټولګي فعاليت

زده کوونکي دې په درې ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د يوه کان د ډبرو د سکرو، نفت او طبيعي ګازو په هکله سره بحث وکړي او پايله دې په ټولګي کې وړاندې کړي.



### پوښتنې

۱ـ د افغانستان له کومو برخو څخه د ډبرو سکاره لاسته راځي؟

۲ـ د نفتو د پيدايښت د منشاء په هکله څرګندونې وکړئ.

۳ـ د طبيعي ګازونو له سوزولو څخه څه ګټه اخيستل کېږي؟



### له ټولګي څخه بهر فعاليت

هر زده کوونکی دې په افغانستان کې د سون د موادو د اهميت په هکله معلومات راټول او د جغرافيې په راتلونکي درسي ساعت کې دې په ټولګي کې وړاندې کړي.

# په افغانستان کې صنایع او سوداګري



غالۍ

د هېواد د لاسي صنایعو په هکله څه معلومات لرئ؟

**تعریف**

صنعت په ګټورو توکو باندې د لومړنیو توکو د شکل له بدلون څخه عبارت دی. دا لومړني توکي کېدای شي کرنیز، حیواني او یا کاني محصولات وي چې د تولیدي مالونو لپاره کارخانو ته وړل کېږي. صنعت پر دوو برخو وېشل کېږي: لاسي صنایع او ماشیني صنایع.

**الف ـ لاسي صنایع**

د ډېرو لرغونو زمانو څخه چې زموږ نیکونه په کرنې بوخت شول، د خپلو اړتیاوو د پوره کولو لپاره یې په لاسي صنایعو لاس پورې کړ. دا کار یوه ښه بوختیا ده او د خلکو د ستونزو د له منځه وړلو لپاره د پیسو پیداکول و. شپږ زره کاله مخکې، د بلخ کروندګرو رسیدلي غنم او وربشې د هغه لور په وسیله رېبلې چې د چقماق له ډېرو څخه جوړ شوی و. د نولسمې پېړۍ په وروستیو وختونو کې زموږ د هېواد په سلوکې ۹۸ خلک په کلیوالي ژوند بوخت وو او له لاسي صنایعو څخه یې ګټه اخیستله

هغوی د پخولو او تارتاوولو او اوبدلو فن زده کړ.

په لاسي صنایعو کې یې له حیواني سرچینو تر لاسه شوې وړۍ، پت، پوستکي او وربښم له نباتي منابعو، لکه: پنبې او سنډ او کاني منابعو، لکه: اوسپنې، مسو، سرو زرو، سپینو زرو او خاورو څخه کار اخیست.

## غالۍ اوبدل

د غالۍ اوبدل له لرغونو زمانو څخه تر اوسه پورې زموږ د هېواد د شمالي برخو د خلکو تر منځ رواج لري. د فارياب د دولت آباد، اندخوی، اقچې او د بلخ د دولت آباد خلک د ښو او عالي جنس او په زړه پورې ډيزاين او رنګ لرونکو غاليو جوړولو او اوبدلو کې ډېر مهارت لري او په قرقين، کندز او هرات کې هم غالۍ اوبدل رواج لري. د مروې، د فارياب دولت آباد، اندخوی او اقچې په نامه غالۍ ډېر کورني او بهرني پيرودونکي لري.

د غالۍ ښه جنس، زموږ د هېواد د صادراتو ستر او مهم قلم جوړوي چې هند، پاکستان، اروپا، روسيې او امريکا ته صادريږي.

## فلزکاري

زموږ د هېواد پښګران له اوسپنې څخه د کرکيلې، ترکاڼۍ او د کورونو د اړتيا وړ وسايل جوړوي. د دې وسايلو په منځ کې د کابل د ده دانا د پښګرانو يوم او د چاريکارو او لغمان د حيدر خانيو د پښګرانو چړې شهرت لري. زموږ د هېواد فلزکاران د موټرو په ترميم، د دروازو، کټارو او اوسپنې زينو په جوړولو او د ودانيو په سيم کارولو کې شهرت لري.

**ب ـ په افغانستان کې ماشيني صنايع**

افغانستان د ماشيني صنايعو له نظره د مخ پر ودې هېوادونو له ډلې څخه دی. د ماشيني صنايعو بنسټ لومړی ځل د امير شيرعلي خان په دوره کې کېښودل شو. د امير عبدالرحمن خان په دوره کې دوه صنعتي فابريکې د ماشين خانې او ورېـ اوبدلو د فابريکو په نامه تاسيس شوې چې د هغو توليداتو د عسکري قطعاتو اړتيا پوره کوله. د افغانستان د نورو مهمو ماشيني صنايعو په لړ کې کولای شو د کابل جنګلک فابريکې، د بغلان بورې جوړولو فابريکې، د کندز د سپين زر غوړي، د مزارشريف د کود او برق کارخانه، د سمنټو فابريکې، د اوبو د برېښنا د دستګاوو، لکه: نغلو، سروبي، درونټې، ماهيپر، کجکي او ګرشک نومونه واخلو.



## د افغانستان سوداګري

ستاسو په نظر سوداګري د اقتصاد په وده کې څه رول لري؟

د هرهېواد پرمختیا او پرمختګ د کورنیو تولیداتو په زیاتوالي او د پلورلو پورې اړه لري. په هره اندازه چې تولیدات ډېر او صادرات زیات وي په همغه اندازه یو هېواد په ځان بسیا او خلک یې په هوسایې او آرامتیا کې ژوند کوي او د پیسو ارزښت او قدرت یې زیاتوالی مومي.

له خپلواکۍ څخه وروسته په ۱۲۹۸ هـ ل کې زموږ په هېواد کې پر سوداګرۍ باندې څارنې ته پاملرنه وشوه. افغاني استازي مسکو، لندن، برلین،انقرې او تهران ته ولېږل شول، ترڅو په سوداګرۍ کې آسانتیاوې منځ ته راشي او د افغانستان صادرات په زیاته اندازه بهرته صادر شي. زموږ د هېواد صادرات په لومړۍ درجه کې حیواني محصولات، لکه: وړۍ، پوستکي، کولمې، د قره قل پوستکي، غالۍ، ټغرونه او په دویمه درجه نباتي محصولات، لکه: تازه او وچې مېوې همدارنګه قیمتي ډبرې او طبي نباتات دي چې بېلابېلو هېوادونو ته صادرېږي.

### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په بېلابېلو ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د لاسي یا ماشیني صنایعو پر یوه ډول باندې سره بحث وکړي او پایله دې خپلو ټولګیوالوته وړاندې کړي.

### پوښتنې

۱ـ صنعت تعریف کړئ.

۲ـ د غالۍ اوبدلو صنعت د هیواد په کومو سیمو کې ډېر رواج لري؟

۳ـ د افغانستان د غوره ماشیني صنایعو نومونه واخلئ.

٤ـ د هېواد اقتصاد څه وخت وده کولای شي؟

۵ـ دافغانستان د غوره صادراتي محصولاتو نومونه واخلئ او کومو هېوادونو ته صادرېږي؟

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

ستاسو په ولایت کې کوم لاسي او ماشیني صنایع رواج لري؟ په اړه یې خپل معلومات راټول او د جغرافیې په راتلونکي درسي ساعت کې یې په ټولګي کې بیان کړئ.

# مواصلاتي جغرافيه



د وچې مواصلاتي لاره

ستاسو په نظر لارې او د ورلو او راوړلو وسايل د خلکو په ژوند کې څه اهميت لري؟

## لاره

لاره يوه ارتباطي وسيله ده او د يوه هېواد په اقتصادي، ټولنيز او فرهنګي پراختيا کې مهم عامل شمېرل کېږي. د لارو رول د کلتور او تمدن په پراختيا او د قومونو او ملتونو په نژديوالي کې زيات ارزښت لري. لاره د شتمنيو د زياتېدو وسيله ده، کرنيز او صنعتي توليدات د لارو په وسيله له توليدي سيمې څخه لګښتي سيمې ته رسول کېږي.

د افغانستان مواصلاتي لارې په درېو برخو ويشل کېږي:

۱ـ وچې لارې ۲ـ هوايي لارې ۳- د اوبو لارې

په افغانستان کې ډول، ډول موټرونه په سړکونو او ډول ډول الوتکې په هوايي کرښو کې د خلکو او مالونو د لېږدولو لپاره فعاليت کوي. په افغانستان کې د موټرو د بېلابېلو ډولونو له واردولو څخه د مخه، زموږ په هيواد کې کورني او بهرني سوداګريز مالونه د حيواناتو، لکه: اوښ، آس، او کچرو د

کاروان په وسیله ترسره کیده. کله چې د امیر حبیب الله خان په دوره کې موټر هېواد ته وارد او ډول ډول باروړونکي او ګړندي موټرونه زموږ په هېواد کې زیات شول او دسرکونو جوړول هم پیل شول. نو له هغه وخته تر اوسه پورې د (۱۵۰۰۰) کیلو مترو نه زیات د موټر د تګ سرکونه جوړشوي چې کابو نیم یې پاخه او کانکریټي دي او نور سړکونه یې خامه دي چې د هېواد بېلابېلې سیمې سره نښلوي. په افغانستان کې د سوداګریزو مالونو لېږدونه د سرحدي بندرونو له لارې، لکه: تورخم، سپین بولدک، اسلام کلا، تورغنډۍ او د آمو د سیند د غاړو بندرونو تاشګذر، شیرخان بندر، حیرتان او کلفت نه کېږي.

دا سرکونه او لویې لارې د کرنیزو، صنعتي او د سوداګریز مالونو د پراختیا سبب ګرځېدلي چې د سویلي او منځنۍ آسیا د هېوادونو ترمنځ اړیکې ټینګوي.

د مهمو سرکونو جدول چې کابل د هېواد له بندرونو او ولایاتو سره نښلوي(اضافی معلومات)

| شمېره | د سرک نوم | واټن په کیلومتر |
|---|---|---|
| ۱ | کابل ـ کندهار | ۴۸۳ |
| ۲ | کندهار ـ هرات تورغنډۍ | ۶۷۹ |
| ۳ | هرات ـ اسلام کلا | ۱۲۴ |
| ۴ | کندهار – سپین بولدک | ۱۰۴ |
| ۵ | کابل – تورخم | ۲۳۱ |
| ۶ | کابل – شیرخان بندر | ۴۰۵ |
| ۷ | پلخمري- مزار شریف - شبرغان | ۳۶۰ |
| ۸ | کابل – ګردیز | ۱۳۲ |
| ۹ | ګردیز – خوست | ۱۱۷ |

## هوايي حمل او نقل

د الوتکو کورنی او بهرنی الوتنې د خلکو په ژوند کې څه اهمیت لري؟

د کرښو هغه تګلوري چې الوتکې يې په فضا کې له يوه ښاره تر بله ښاره پورې وهي هوايي لارې او هوايي کرښې ورته ويل کېږي. الوتکه د مسافرت ډېره چټکه او آرامه وسيله ده چې مسافران، قيمتي او نازک سوداګريز توکي په کم وخت کې نورو لېرې او نيژدې سيمو ته وړي. په ۱۲۹۸ هـ لمريز کې وروسته له دې چې د هېواد خپلواکي ترلاسه شوه د آلمان او روسيې له هېوادونو څخه الوتکې و پيرودل شوې او لومړنی هوايي ډګر د کابل د ښار په خواجه راوش کې جوړ شو. اوس ډول، ډول ملکي او پوځي الوتکې د هېواد په دننه او بهر کې د مسافرينو او سوداګريزو مالونو په لېږدولو، الوتنو او فعاليت بوختې دي.

کورنی الوتنې له کابل څخه ولايتونو او هغو سيمو ته ترسره کېږي چې هوايي ډګرونه پکې جوړ شوي دي. بهرنی الوتنې له کابل نه اسلام آباد، نوي ډيلي، تهران، دوبی، شارجې، اورمچی، فرانکفورت او له نوموړو ښارونو څخه بيرته کابل او کندهار نړيوالو ډګرونو ته ترسره کېږي. د کابل د خواجه رواش ميدان کانکريټي او د کندهار ميدان قير شوي دي. وروسته د ننګرهار، کندز، مزارشريف، هرات او پکتيا هوايي ډګرونه جوړ شول. د هېواد په بېلابېلو سيمو کې نور هوايي ډګرونه خام دي. وروستی هوايي ډګر په ۱۳۷۶ هـ ل کې په باميانو کې د (شيبرتو) په نامه جوړ شوی دی.

په هوايي ډګرونو کې الوتکې، د الوتلو کرښې (Runway)، ترمينال، مخابراتي وسيلې، نقليه وسايل د الوتکو زينه، هوټل، د مسافرينو خونې او فني او مسلکي پرسونل شته دي.

د آريانا ملي هوايي شرکت په ۱۳۳۳ هـ لمريز کال کې چې په سلو کې ۵۱ پانګه يې د افغانستان ملي پانګه او په سلو کې ۴۹ يې د انديمار د کمپنۍ په پانګې چې وروسته يې ځای پان امريکن ونيو (دآريانا افغان الوتنه) په نامه جوړ شو. په لومړيو کې د اکوتا ډوله الوتکو چې د دېرش تنو ظرفيت يې درلود په



کورنیو او بهرنیو ډګرونو کې یې کار پیل کړ. وروسته بل ملي شرکت (د باختر افغان الوتنې) په نامه جوړ شو چې اوس فعالیت نه لري. زموږ په هېواد کې اوس ځینې خصوصي هوايي شرکتونه هم فعالیت لري.

### د ټولګي دننه فعالیت

زده کوونکي دې په دوو بېلابېلو ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د وچې او هوايي لارو څخه پر یوې باندې بحث وکړي او پایله دې خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړي.

### پوښتنې

۱ـ د لارو اهمیت بیان کړئ؟
۲ـ افغانســتان ته د موټرو له واردېدو نه مخکې کورنۍ او بهرنۍ ســوداګري د څه شي په وسیله ترسره کېده؟
۳ـ له هوايي کرښو څخه مقصد څه دی؟
٤ـ د کابل نه د الوتکو الوتنې کومو کورنیو او بهرنیو ښارونو ته کېږي؟

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

د لغتونو او اصطلاحاتو عددونه د الفبا د اړوندو تورو سره په خپلو کتابچو کې ونښلوئ او ویې ولیکئ.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱ | الوتکه | الف | په دریو برخو د وچې، هوايي او د اوبو لارو وېشل شوي دي. |
| ۲ | موټر | ب | د موټر له واردېدو او سرک جوړولو نه مخکې سوداګریز مالونه د حیواناتو په واسطه، لکه: اوښ، آس او کچر له یوه ځایه بل ځای ته وړل کېده. |
| ۳ | د څارویو کاروان | ج | پر سرک تګ او راتګ کوي خلک او مالونه لېږدوي. |
| ۴ | د افغانستان بندونه | د | په هوايي الوتنو کې مسافرین، نازک او قیمتي مالونه په کم وخت کې په آرامه توګه له یوه ځایه بل ځای ته لېږدوي. |
| ۵ | لارې | هـ | د کرنیزو، صنعتي او سوداګریزو مالونو د ودې او د سویلي او منځنۍ آسیا په منځ کې اړیکې ټینګوي. |

## د څپرکي لنډيز

– افغانستان غرنی هېواد دی چې د آسیا د لویې وچې په سویل کې د (۶۵۲۰۰۰) کیلومتره مربع په پراخوالي سره پروت دی.
ـ  د افغانستان دریمه برخه خاوره غرنۍ ده او ځینې برخې یې هوارې دي.
ـ د افغانستان یوڅه برخه خاوره د مارگو، سیستان، بکوا او داسې نورو دښتو نیولې ده.
ـ افغانستان د جغرافيايي موقعیت او طبیعي جوړښت له نظره په شپږو اقلیمي سیمو صحرایي،غرني، مونسون، مدیترانه یي، ستپي او توندرا باندې ویشل شوی دی.
ـ د افغانستان د غرونو غوره لړونه هندوکش، د بابا غر، سفید کوه، تور غر او سپین غر دي چې د کاني توکو د لویو زېرمو لرونکي، د ډېرو سیندونو سرچینه او د هېواد پر آب و هوا ډېره اغیزه لري.
ـ د افغانستان سیندونه په پنځو اوبه لرونکو حوزو کابل، آمو، هلمند، هریرود او تړلو حوزو باندې وېشل شوي دي.
ـ د افغانستان ډېر اوږد سیند د هلمند سیند دی چې د بابا د غره له لوېدیځو لمنو څخه سرچینه اخلي او لوېدیځ لور ته بهیږي.
ـ د هریرود سیند د افغانستان او ایران ترمنځ له اسلام کلا څخه د ذوالفقار تر سیمې پورې طبیعي پوله جوړوي.
ـ د افغانستان په ځینو برخو کې چې تړلې حوزې لري جهیلونه منځ ته راغلي دي، لکه: د سیستان هامون، د شیوا جهیل، د زرقول جهیل، د امیر بند او د غزني ولاړې اوبه.
ـ افغانستان یو پراخه هېواد دی چې د وګړو وېش یې په ټولو ځایونو کې یوشان نه دی، ختیځې سیمې د نفوسو نه ډکې او سویل لوېدیځې او مرکزي سیمې یې کم نفوسه دي.
ـ افغانستان کرنیزهېواد دی. ډېر مهم حاصلات یې غنم، وریجې، جوار، اوربشې او نور دي.
ـ جغرافيايي موقعیت او طبیعي ځانګړنو ته په پام سره په افغانستان کې صنعتي او طبي نباتات لکه: پنبه، چغندر، ګنې، زعفران، خوږه وله، سپیرکی، بادیان او نور په کې وده کوي.
ـ د ځارویو ساتل، د افغانستان له منابعو څخه یوه مهمه سرچینه ده  چې پسونه، وزې، د قره قل پسونه، غواګانې او نور پکې شامل دي.
ـ افغانستان بېلابېل کانونه، لکه: اوسپنه، مس، سره زر، سپین زر، قیمتي ډبرې، سرپ، جست، مالګه او سلفر لري.
ـ افغانستان د سون بیلابیل کاني توکي، لکه: د ډبرو سکاره، نفت او طبیعي ګاز لري چې د هیواد د اقتصاد په ودې او پرمختیا کې مهم رول لري.
ـ په افغانستان کې صنایع په دوو برخو لاسي صنایعو (د غالۍ اوبدل...) او ماشیني صنایعو (د کابل جنګلک فابریکه او ...) وېشل کیږي.
ـ په افغانستان کې ډول ډول موټرونه پر سرکونو او وچو لارو کې او راز، راز الوتکې په هوایي کرښو کې د مسافرینو او سوداګریزو مالونو د لېږدولو لپاره فعالیت کوي.

# دریم څپرکی

# د آسیا لویه وچې



## د دې څپرکي موخې

**له زده کوونکو څخه هیله کېږي چې ددې څپرکي له ویلو وروسته:**

- په نړۍ کې د آسیا د لویې وچې له موقعیت سره بلد شي.
- د آسیا طبیعي جغرافیې په اړه معلومات پیدا کړي.
- د آسیا له بشري جغرافیې سره بلد شي.
- د  آسیا د لویې وچې اقتصادي جغرافیې سره بلدشي.
- د آسیا د لویې وچې  د حمل او نقل په اړه معلومات پیدا کړي.
- د آسیا د لویې وچې له سیاسي جغرافیې سره بلد شي.
- د آسیا د لویې وچې له اقلیم سره بلد شي.
- د آسیا په لویه وچه کې د اقتصادي شتمنیو په اړه معلومات پیدا کړي.
- د آسیا د لویې وچې له مهمو سیندونو، سمندرګیو او جهیلونو سره بلد شي.

**له زده کوونکو څخه هیله کېږي چې د دې څپرکي په لوستلو سره لاندېنیو مهارتي موخو ته ورسېږي:**

- د آسیا د لویې وچې انځورول او په هغې کې د سرحدونه، سمندرګي، مهم سیندونه، جهیلونه، غرونه او داسې نور په نښه کړای شي.
- د آسیا د لویې وچې د نقشې پرمخ طبیعي شیان وښودلای شي.
- د سپینې نقشې پرمخ سرحدونه، سمندرګي، مهم سیندونه، جهیلونه او غرونه په نښه کړای شي.

# د آسیا د لویې وچې موقعیت او ځلور خواوې




د آسیا نقشه له ځلورو خواوو سره یې

آیا پوهیږئ چې آسیا تر ټولو لویه وچه ده؟

د آسیا لویې وچې زیاته برخه په ختیځ او شمالي نیمه کره کې موقعیت لري. د آسیا لویه وچه د ختیځ طول البلد د ۲۵ درجو او د لوېدیځ طول البلد د ۱۷۰ درجو په منځ کې، د جنوبي عرض البلد د ۱۰ درجو او د شمالي عرض البلد په ۸۰ درجو کې پرته ده. پراخوالی یې ٤٤،۲ میلیونه کیلومتره مربع دی. د آسیا د لویې وچې په شمال کې کنګل شوی شمالي سمندر، جنوب خواته یې د هند سمندر او ختیځ خواته یې آرام سمندر پروت دی. لوېدیځ خواته د آسیا او اروپا د لویو وچو په منځ کې د اورال غرونه، د اورال سیند، د کسپین سمندرګی، تور سمندرګی او د باسفورس آبنا جوړه وي. د جنوب لوېدیځ خواته سورسمندرګی او د سویز کانال آسیا له افریقا څخه بېلوي. د شمال ختیځ خواته یې د بیرنګ آبنا آسیا د امریکې له لویې وچې نه جلا کوي.

د آسیا او اروپا لویې وچې یوځای د یوریشیا په نامه هم یادوي. څرنګه چې خلکو د آسیا اروپا او افریقا دریو لویو وچو په اړه له پخوا څخه معلومات درلودل، نو ځکه د لرغوني نړۍ په نامه هم د

هغو یادونه شوې ده.

د آسیا لویه وچه درې لویې ټاپو وزمې لري چې هغه دا دي: د عربستان ټاپو وزمه، د هند ټاپو وزمه او د هند و چین ټاپو وزمه. په دې لویه وچه کې د نړۍ ډېرې لوړې څوکې پرتې دي.

د آسیا لویه وچه د لرغونو تمدنونو او دینونو زانګو ده. د نړۍ خلک آسیا د کلدې، آشور او بابل د لرغونو تمدنونو سره پېژني. د کتنې وړ او تاریخي آثار، لکه: په مکه معظمه کې د کعبې خونه او د اسلام د ستر پیغمبرحضرت محمدﷺ زیارت په مدینه منوره کې ډېر اهمیت لري. حضرت آدم او بي بي حوا علیهما السلام په آسیا کې ژوند کاوه. د الله پاک لوی او مهم دینونه لکه: د اسلام مقدس دین، د عیسویت او یهودیت دینونه او لوی ائینونه لکه: بودیزم، کنفیسوس او نور په دې لویې وچې کې منځ ته راغلي دي.

### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په بېلابېلو ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د ټولګي په مخ کې د آسیا جغرافیایي موقعیت، شاوخوا سمندرونه، کانالونه، آبنا ګانې او ټاپو وزمې د نقشې پرمخ وښيي.

### پوښتنې

۱ ـ د آسیا د لویې وچې د شاوخوا سمندرونو نومونه واخلئ؟

۲ ـ تش ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړئ:

الف ـ د ............ غرونه د آسیا او اروپا د لویو وچو په منځ کې طبیعي سرحد جوړوي.

ب ـ د ............... سمندرګی او .......... کانال آسیا له افریقا نه بېلوي.

ج ـ د ................. آبنا آسیا د امریکا له لویې وچې نه جلا کوي.

۳ ـ د آسیا د دریو ټاپو وزمو نومونه واخلئ.

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د آسیا د لرغونو تمدنونو او بېلابېلو دینونو په اړه معلومات را غونډ کړي او په راتلونکي درسي ساعت کې دې په ټولګي کې واوروي.



د آسیا د غرونو په اړه څه پوهېږئ؟

د هماليا غر

د آسیا لويه وچه لوړ غرونه، لوړې سطحې او پراخې دښتې لري. د آسیا ټولې لرغونې برخې د جیولوژي په دویمه دوره کې د یوه لوی سمندر تر اوبو لاندې وې او د تیتس په نامه یادېدې چې د ارال او بالخاش جهیلونه او د کسپین او تور سمندرگی، د تیتس د سمندر د پاتیشونې برخه ده. اوس د تیتس سمندر له منځه تللی او د هغه پرځای د آسیا لویه وچه پرته ده. د آسیا د لویې وچې غرونه د پامیر له لوړې برخې نه پیل شوي، ختیځ خواته د چین ترختیځ د سایبریا تر جنوب ختیځ او لوېدیځ خواته د ترکیې تر آخره پورې پراته دي.

د آسیا ډېر جگ غرونه د هند په شمال کې د هماليا غرونه دي چې له ختیځ څخه مخ پر لویدیځ پراته دي. جگه څوکه یې د ایورست په نامه یادیږي چې د سمندر له سطحې څخه ۸۸٤۸ متره لوړوالی لري. د هماليا د غرونو لوېدیځ خواته په افغانستان کې د هندوکش غرونه، په ایران کې د البرز او زاگروس غرونه، قفقاز غرونه او په ترکیه کې د پونتیك او اناتولي غرونه پراته دي. همداراز ختیځ خواته د چین په شمال کې د تیانشان او د التايي لوړ غرونه دي. د مغولستان، تبت، گوبي او پامير لوړې برخې چې د آسیا د

لویې وچې په منځنۍ برخه کې پرتې دي، د آسیا ډېره لویه جګه سطح جوړوي. همداراز د آسیا لویه وچه پراخې دښتې لري چې هغه دا دي:

د مغولستان دښتې، د ایران د کویر او لوت دښتې، د سوریې او عراق دښتې او په عربستان کې د ر بع الخالي دښتې.



### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په بېلابېلو ډلو وویشل شي، هره ډله دې د آسیا د طبیعي شیانو له جملې څخه یو، لکه: غرونه، دښتې، جهیلونه او د تیتس له سمندر نه پاتې سمندرګی او د آسیا لوړې سطحې د نقشې پرمخ وښیي.

### پوښتنې

۱ ـ د هندوکش د غرونو لړۍ په کوم هېواد کې ده؟ او کوم لورته غځېدلې ده؟
۲ ـ د همالیا غر د آسیا په کومه برخه کې پروت دی او جګه څوکه یې څومره لوړوالی لري؟
۳ ـ د ایران او ترکیې غرونه په څه نامه یادیږي او کومو خواووته پراته دي؟
٤ ـ د تیتس سمندر په کوم ځای کې و او څه نښه یې پاتې ده؟
۵ ـ د آسیا د دښتو نومونه واخلئ.

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د یوه چوکاټ په منځ کې د پامیر لوړه سطح په نښه کړي، وروسته دې د آسیا د غرونو نومونه ولیکي او په راتلونکي درسي ساعت کې دې په ټولګي کې ولولي.

اووه ویشتم لوست

# د آسیا د لویې وچې د سیندونو په اړه څه پوهېږئ؟

که څه هم د آسیا په لویه وچه کې پراخې دښتې پرتې دي، خلک د اوبو د نشتوالي له امله له ستونزو سره مخامخ دي، خو بیا هم د آسیا لویه وچه ډېر سیندونه لري. د آسیا سیندونه د بهیر له مخې چې سمندرونو خواته روان دي په څلورو حوزو وېشل کېږي.

۱ ـ هغه سیندونه چې د سایبریا د جنوب له غرونو څخه سرچینه اخلي او له سویل څخه مخ پر شمال بهیږي او شمالي کنګل سمندرته ور تویږي او له لوېدیځی نه مخ پر ختیځ دا دي: د ob اوب، ینسی او لینا سیندونه. د دې سیندونو اوبه کله، کله شمالي کنګل شوي سمندر ته نژدې کنګل وهي.

۲ ـ هغه سیندونه چې د آسیا ختیځ خواته بهیږي او د آرام سمندر، سمندرګیو ته تویږي په ترتیب سره د شمال نه سویل خواته ځي دا دي: د آمور سیند چې د مغولستان له شمالي غرونو څخه سرچینه اخلي او د ولادی واستوک بندر ته نژدې د اخوتسک سمندرګي ته تویږي. د هوانګهو سیند چې د منځني چین له غرونو څخه سرچینه اخلي او د چیهلي په خلیج کې چې د کوریا د خلیج په لوېدیځ کې پروت دی، تویږي.

د میکانګ سیند چې د سویلي چین له غرونو څخه سرچینه اخلي او د کمبودیا په سویل کې د سویلي چین سمندرګي ته تویېږي.

۳ ـ هغه سیندونه چې د آسیا له ختیځ نه لوېدیځ ته د هند د سمندر، سمندرګیو، د عربو سمندرګي او د فارس خلیج ته تویېږي دا دي:
ایراوادي له میانمار څخه د مارتابان خلیج ته تویېږي. د ګنګا سیند چې هندیانو ته سپیڅلی دی او د بنګله دېش په څنګ کې د بنګال خلیج ته تویېږي. د سند سیند چې د عمان په سمندرګي کې تویېږي د کارون سیند او د دجلې او فرات سیندونه چې شط العرب (اروند رود) جوړوي او وروسته د فارس خلیج ته ورتوییږي.

٤ ـ هغه سیندونه چې د آسیا په داخلي جهیلونو کې تویېږي دا دي:
آمو (جیحون) او سیردریا (سیحون) چې د ارال په جهیل کې توییږي. د اورال سیند چې د آسیا او اروپا په سرحد کې بهیږي د کسپین په سمندرګي کې تویېږي.

### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په څلورو ډلو ووېشل شي، هره ډله دې له پورتنیو سیندونو څخه په یوه باندې په خپل منځ کې سره بحث وکړي او د نقشې پرمخ دې مطلب په ټولګي کې بیان کړي.

### پوښتنې

۱ ـ د آسیا سیندونه په څو برخو وېشل شوي دي؟
۲ ـ د آسیا د شمالي برخې د سیندونو نومونه واخلئ.
۳ ـ هغه سیندونه چې د آرام سمندر، سمندرګیو کې تویېږي نومونه یې واخلئ.
٤ ـ هغه سیندونه چې په بنګال خلیج او عربو سمندرګي کې توییږي نومونه یې واخلئ.
٥ ـ د افغانستان کوم سیند په ارال جهیل کې تویېږي؟
٦ ـ هغه سیندونه چې د فارس په خلیج کې تویېږي نومونه یې واخلئ.

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

له سیندونو نه څه ګټه اخلو؟ په دې اړه یوه مقاله ولیکئ او په راتلونکي درسي ساعت کې یې په ټولګي کې ولولئ

# د آسیا د لویې وچې جهیلونه، سمندرګي او خلیجونه

آیا پوهیږی چې د اسیا په لویه وچه کې کوم ستر سمندرګی او جهیلونه موقعیت لري؟

د آسیا مهم جهیلونه اکثراً د روسیې په سایبریا، چین، قزاقستان، منځنی آسیا، سهیل ختیځ او لوېدیځ آسیا کې پراته دي چې مهم یې دا دي:

په سایبریا کې د بایکال جهیل چې د انګارا د سیند په اوږدو کې منرالي اوبه لري، اعظمي اوږدوالی یې ۷۰۰ کیلومتره او سور یې ۱۳۰ کیلومتره دی.

د خانکا جهیل د چین په ختیځ کې، په قزاقستان کې د بالخاش او ارال جهیلونه نامتو دي.

په قرغزستان کې د بسیک کول جهیل مشهور دی.

په افغانستان کې د چقمقتین او شیوا جهیلونه، د امیر بند، د غزني ولاړې اوبه او د سیستان هامون جهیل ډېر مشهور دي.

د ایران په لوېدیځ کې د ارومیه جهیل مشهور دی.

په ترکیه کې د وان جهیل نامتو دی.

د سون کاری جهیل د شمالي کوریا په شمال کې، لوب نور او یو شمېر زیات نور جهیلونه چې توریستي زیاتې منظرې لري مشهور دي چې هر کال یو شمېر سیلانیان د هغو جهیلونو لیدو ته ورځي.



آیا د آسیا د لویې وچې د خلیجونو په اړه معلومات لرئ؟

د آسیا سواحل پرې کړي او تاوراتاو ځایونه زیات لري، له دې امله د سواحلو په شاوخوا کې یې زیات خلیجونه لیدل کېږي چې ځینو یې د بېړی چلولو لپاره ښه لاره هواره کړې ده.

**د آسیا د شمالي سواحلو خلیجونه**: ډېر مشهور یې د اوب خلیج دی، خو واړه نور کوچني خلیجونه هم لري.

**د ختیځې آسیا د سواحلو خلیجونه**: د کرونوتسکي خلیج او نور.

**د آسیا د سویلي سواحلو خلیجونه**: د سیام خلیج، د بنګال خلیج، د فارس خلیج، د عدن خلیج او نور.

**د آسیا لوېدیځ ساحلي خلیجونه**: کوچنی خلیج د عقبې د خلیج په نامه یادېږي.

لوی او واړه سمندرګي هم په آسیا کې لیدل کیږي. د کسپین سمندرګی د آسیا په دننه کې چې د آسیا د لویې وچې په دننه کې ډېر لوی سمندرګی دی.

**د آسیا د ختیځ سمندرګي**: د بیرنګ سمندرګی، د اخوتسک سمندرګی، د جاپان سمندرګی، ژېړ سمندرګی او د ختیځ چین سمندرګي دي.

**د آسیا د سویل سمندرګی**: د ختیځ چین سمندرګی، د جاوا سمندرګی، د اندامان سمندرګی، د عربو سمندرګی او د عمان سمندرګی چې زیات سوداګریز اهمیت لري.

د آسیا په لوېدیځ کې سور سمندرګی د ډېر اهمیت وړ دی.

### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په دریو ډلو ووېشل شي، لومړی ډله دې د آسیا جهیلونه، دویمه ډله دې د آسیا خلیجونه او دریمه ډله دې د آسیا سمندرګي په هغه نقشه کې چې د ټولګي مخې ته ځړېدلې ده وښیي.

### پوښتنې

۱ ـ د آسیا د ختیځ د دریو سمندرګیو نومونه واخلئ.

۲ ـ د جاپان سمندرګی کوم هېوادونه سره بیلوي؟

الف ـ ترکیه او سوریه ب ـ جاپان او کوریا

۳ ـ د کسپین سمندرګی د آسیا په کومه برخه کې پروت دی؟

الف ـ ختیځ ب ـ لویدیځ ج ـ شمال د ـ سویل هـ ـ منځنی

٤ ـ ولې د آسیا د سواحلو په څنګ کې ډېر خلیجونه شته دي؟

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

هر زده کوونکی دې د آسیا نقشه انځور کړي او په هغه کې دې د مهمو سمندرګیو او خلیجونو نومونه ولیکي.

# د آسیا د لویې وچې اقلیم




د آسیا د لویې وچې اقلیمي نقشه

آیا پوهېږئ چې د آسیا اقلیم د دې لویې وچې د خلکو په ژوند باندې څه اغېزه لري؟

آسیا ډېره پراخه او لویه وچه ده. د استوا له سیمې څخه ترشمالي قطبه او له ختیځ نه تر لوېدیځ پورې بېلابېلې اقلیمي سیمې لري. له دې امله چې د آسیا په لویه وچه کې نباتي پیداوار، ځنګلونه، خاوره، د کورونو او جامو ډولونه بېلابېل او راز راز دي، د آسیا راز راز اقلیم په لاندې توګه دی:

## ۱ - د قطبي او یخچالي سیمو اقلیم

د آسیا د لویې وچې د شمالي سواحلو په اوږدو کې د شمالي عرض البلد له $\frac{1}{2}$۶۶ درجو څخه تر ۸۵ درجو پورې قطبي اقلیمي برخې پراختیا پیدا کړې ده. دا اقلیمي سیمه د تندرا سیمې په نامه یادیږي. ټیټ بوټي دلته زیات دي، خاوره یې حاصلخېزه نه ده. له کنګل او واورې نه ډک وي. تودوخه یې ډېره کمه ده چې کابو د سانتي ګرېد ۶۰- درجو ته رسیږي.

## ۲ ـ د قطب لاندې اقلیم

دغې اقلیمي سیمه له ختیځ نه لوېدیځ ته د سایبریا زیاته برخه نیولې ده. ژمی یې ډېر سوړ او دوبی یې لږ سوړ یعنې د سانتي ګرېد ۱۸ او ۱۹ درجې دی. د ناجوګانو همېشنې شنه ځنګلونه په دې سیمو کې زیات دي.

### ۳ ـ د ستپ د سیمې اقلیم

دا ډول اقلیم د منځنۍ آسیا د چین له شمال لوېدیځ څخه پیل شوی لکه د یوه کمربند په څېر تر ترکیې پورې غځېدلې ده. د افغانستان او ایران په ګډون د منځنۍ آسیا هېوادونه پکې راځي. د اورښت اندازه یې ډېره کمه ده یعنې کابو د ۱۵۰ او ۲۰۰ ملي مترو په منځ کې ده. تودوخه یې په دوبي کې کابو ۴۰ درجې د سانتي ګرید ته او د ژمي سوړ والی یې منفي لس او پنځلس درجو د سانتي ګرید ته رسیږي . ددې په څېر صحراګانې په ایران ، افغانستان، هند او پاکستان کې هم لیدل کېږي.

### ۴ ـ د غرنیو او لوړو برخو اقلیم

د همالیا، قراقرم، تیان شان، هندوکش، البرز او زاګروس د غرو لړیو د لوړو سیمو اقلیم جوړ کړی دی. د اورښت اندازه یې تل د واورو په شکل وي. د غرونو دا لړۍ د آسیا د سیندونو سرچینه جوړوي.

### ۵ ـ صحرایي اقلیم

د عربستان ټاپو وزمه چې د افریقا د لویې صحرا په اوږدو کې پرته ده د دوبي د تودوخې درجه یې له ۴۵ سانتي ګرید درجو نه زیاتیږي او په ژمي کې شلو او پنځلس درجو ته راټیټیږي. په ډېرو کلونو کې اورښت پکې نه کېږي. اورښت یې کله کله ۵۰ ملي مترو ته رسیږي چې هغه سېلابي او تخریبي وي.

### ۶ ـ معتدل اقلیم

کلنی اورښت یې له ۴۰۰ ملي مترو څخه زیات وي او د ژمي منځنۍ تودوخه یې له پنځلس درجو نه جګه او دوبی یې سانتي ګرید ۳۰ درجو ته رسیږي. د چین ټول هېواد د همالیا جنوب او د هند شمال په دې اقلیم کې شامل دي.

### ۷ ـ مدیترانه یي اقلیم

د ترکیې یوه محدوده ساحلي برخه، د عراق شمال ختیځه برخه، د کسپین د سمندرګي سویل ختیځې ساحلي برخې یوه کوچنۍ سیمه او د مدیترانې سمندرګي ختیځې غاړې په مدیترانه یي اقلیم کې شاملې دي. دوبی یې تود او وچ، ژمی یې باراني او معتدل دی. دستروس ونې (نارنج، مالټه، لیمو) او مدیترانه یي بوټي په دې ځای کې ډېر شنه کېږي.

### ۸ ـ د استوایي سوانا اقلیم

د دوبي اورښت یې له ۸۰۰ ملي مترو څخه زیات دی. د اوړي او ژمي تودوخه یې زیات بدلون نه لري، د

۲۰ او ۳۰ درجو په منځ کې بدلون لري د هند و چین ټاپو وزمه او د هند د نیمې قارې زیاته برخه دا ډول استوایي سوانا اقلیم لري. جګ، جګ بوټي، میوه لرونکې او بې میوې ونې پکې شنې کېږي.

### ۹ ـ د ا ستوا د باراني ځنګلونو اقلیم

د شرق الهند ټاپوګان، د هندوچین لوېدیځ سواحل د بنګله دېش سویل او د شمال لوېدیځ هند یوه برخه په دې کې شامل دي. کلنی اوربښت یې ډېر زیات دی او په هره میاشت کې له ۵۰۰ ملي مترو



څخه زیات اوربښت لري. په دې ځای کې د کال فصلونه نشته، کلنی منځنی تودوخه یې د سانتي ګرید ۲۵ او ۳۰ درجو په منځ کې ده. هوا یې تل توده او لمده وي. د ربړ ونې یې له مهمو پیدا وارو څخه دي.



### د ټولګي فعاليت

زده کوونکي دې په درېو ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د آسيا د اقليم درېو سيمو تر بحث لاندې ونيسي او پايله دې خپلو ټولګيوالو ته بيان کړي.

### پوښتنې

۱ ـ د تندرا سيمه د آسيا د کوم ډول اقليم په سيمه کې پرته ده؟

الف ـ تر قطبي لاندې　　ب ـ قطبي ساحه　　ج ـ صحرايي　　د ـ غرني

۲ ـ د استوايي ځنګلونو اقليم کومې ځانګړتياوې لري؟

الف ـ ډېر اورښت د زياتې تودوخې سره　　ب ـ کم اورښت او تودوخه يې له صفر نه ټيټه

۳ ـ بنګله دېش کوم ډول اقليم لري؟

الف ـ قطبي اقليم　　ب ـ تحت قطبي اقليم　　ج ـ استوايي اقليم　　د ـ صحرايي اقليم

٤ ـ صحرايي اقليم دآسيا په کومه برخه کې موجود دی؟

### له ټولګي څخه بهر فعاليت

زده کوونکي دې د آسيا اقليمي نقشه رسم کړي او د ډول، ډول اقليمونو سيمه دې په رنګونو په نښه کړي.

# بشري جغرافيه




د آسيا د نفوسو ګڼوالي ته په نقشه کې ځير شئ. آيا ددې لويې وچې په ټولو ځايو کې خلک په يوه اندازه مېشت دي؟ په کومو ځايونو کې د خلکو ګڼوالی زيات او په کومو ځايونو کې خلک لږ ليدل کېږي؟

د ۲۰۱۷ ميلادي کال د سر شمېرنې له مخې د آسيا په لويه وچه کې د نفوسو شمېر کابو ۴،۱ ميليارده کسه شمېرل شوی دی.

د وګړو نه ډکې او لږ نفوسه سيمې د ژوند د شرايطو پر اساس د آسيا په بېلو بېلو برخو کې سره توپير کوي.

په هغو سيمو کې چې د ژوند ښه شرايط، لکه: ښه او برابر اقليم، د کرنې او مالدارۍ پراخې ځمکې، د صنعتي فابريکو موجوديت، ښارونه او د سوداګرۍ بندرونه، ترانسپورتي ډېرې لارې، د مواصلاتو وسايط او وسيلې او زياته کارموندنه په کې وشي، د نفوسو شمېر هلته مخ په زياتېدو دی. په غرنيو سيمو کې چې په اوږدې مودې کې سوړ اقليم لري، کرنيزې لږې ځمکې، د صنعتي فابريکو نشتوالی، د ترانسپورتي وسايلو او لارو کمبود او خرابوالی، د کارنه پيداينښت، وزګارتيا او

همدارنګه په ګرمو، مرطوبو، ځنګلي او با طلاقي سیمو کې د وګړو شمېر ډېر کم وي.
کوم هیوادونه چې په آسیا کې زیات نفوس لري د چین، هند، اندونیزیا، پاکستان، بنګله دېش، جاپان او سویل ختیځ آسیا هېوادونه دي.

## ژبې

د آسیا خلك په بېلابېلو ژبو خبرې کوي. د آسیا دخلکو ژبې په دوو لویو برخو وېشل شوي چې د ژیړ پوستکو ژبې، لکه: د چین، کوریا او مغولستان د خلکو ژبې دي. او د سپین پوستکو ژبې، لکه: عربي، اردو، پښتو، دري، فارسي او ترکي ژبې دي.

## دینونه

د آسیا لویه وچه، د لویو دینونو او لرغونو آیینونو لویه وچه ده. لوی دینونه یې عبارت دي له: د اسلام مقدس دین، مسیحیت او یهودیت څخه. د عربي هېوادونو، د منځنۍ آسیا هېوادونو، افغانستان، ایران، پاکستان، بنګله دېش، اندونیزیا او نورو هېوادونو کې هم مسلمانان په مختلفې سلنې استوګنه لري چې مقدس ځایونه یې په مکه معظمه، مدینه منوره او بیت المقدس کې دي.

د آسیا د لویې وچې لرغوني آیینونه: بودایي، برهمایي، شنتو، کنفسیوس او داسي نور دي چې د چین، هند، جاپان او کوریا خلك یې پیروان دي.



په بیت المقدس کې د اقصیٰ د جومات انځور



د مکې معظمې انځور

## نژاد

د آسیا خلك درې رنگه يعنې سپين، ژېړ او كم رنگه تور نژاد لري.

- سپين نژاد: په منځنۍ آسیا، لوېديځه او سويل لوېديځه آسیا او د سويلي آسیا په يوه برخه كې ژوند كوي.
- ژېړ نژاد: په ختيځ، سويل ختيځ او سايبريا كې ژوند كوي.
- تور نژاد: دهند په سويل كې، سريلانكا او د مالديو په ټاپوگانو كې استوگنه لري.







## د ټولګي فعالیت

د هرې ډلې غړي دې پریوې لاندېنیو پوښتنو باندې بحث وکړي او نقشې ته په ځیرکېدو سره دې ځواب ووایي.

۱ ـ دآسیا د وګړو نه د ډکو هیوادونو نومونه واخلئ.

۲ ـ لږ نفوسه سیمې د آسیا په کوموځایونوکې پرتې دي؟ ولې لږ نفوسه دي؟

۳ ـ اسلامي مقدس ځایونه په کوم هېوادکې پراته دي او د څه په نامه یادېږي؟

٤ ـ د آسیا د خلکو د نامتو ژبو نومونه واخلئ؟

٥ ـ ژیړ پوستکي په کومو آسیایي هېوادوکې ژوند کوي؟

٦ ـ د جاپان، هند او بنګله دېش خلک د کوم آیین او دین پیروان دي؟



## پوښتنې

په لاندې جدول کې په ځیر سره وګورئ، د الفبا د څنګ اعداد د مربوطو جملو په قطار کې ورسوئ.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱ | الف | د مسلمانانو مقدس ځایونه | دآسیا په ختیځ، سهیل ختیځ او سایبریا کې ژوند کوي |
| ۲ | ب | د آسیا د وګړو ډک هېوادونه | د هند په سهیل، سریلانکا او د مالدیو په ټاپوګانو کې ژوند کوي |
| ۳ | ج | ژیړ پوستکي | په غربي سوړ اقلیم سیمه کې، تودې مرطوبې، ځنګلي اوبا طلاقي سیمې کې. |
| ۴ | د | د نفوسو ګڼوالی | په سعودي عربستان او فلسطین کې موقعیت لري. |
| ۵ | هـ | کم رنګه تور پوستکي | د انسانانو په منځ کې د افهام او تفهیم وسیله ده. |
| ۶ | و | کم نفوسه سیمې | چین، هند، اندونیزیا،پاکستان، بنګله دېش، جاپان او د هند او چین هېوادونه دي. |
| ۷ | ز | ژبه | هغو سیموکې چې د ژوند ښه شرایط او د کار پیدایښت وي. |



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

کوم عوامل په یوه سیمه کې د وګړو د زیاتیدو لامل ګرځي؟ په دې اړه په خپلو کتابچو کې یو مطلب ولیکئ او په راتلونکي ساعت کې یې په ټولګي کې ولولئ.

# اقتصادي جغرافیه




آیا کولای شئ چې د آسیا په لویه وچه کې د چای د تولیدونکو څو هیوادونو نومونه واخلئ؟

د آسیا د لویې وچې اقتصادي نقشې ته وګورئ. پخوا د آسیا د لویې وچې اقتصاد په کرنه او مالدارۍ ولاړ و چې په ابتدایي شکل کې و، خو د وګړو د زیاتوالي او د ښارونو د ودې سره غذایي توکو ته ورځ په ورځ اړتیا زیاته شوه.

له دې امله آسیایي هېوادونه زیار باسي خلکوته د غذایي توکو د برابرولو لپاره، د کرنې د نویو طریقو او ماشین آلاتو نه په ګټې اخیستنې سره کرنیز تولیدات زیات کړي. د آسیا په لویه وچه کې د اقلیمي ځانګړو شرایطو په اساس په هغو ځایونو کې چې حاصلخیزې ځمکې او زیاتې

د چای کرونده



اوبه لري، خلك په کرنې بوخت دي.

د آسیا د لویې وچې په بېلو بېلو برخو کې د اقلیم او کرنې هماهنګي باید په پام کې ونیسو. د آسیا په وچو سیمو کې غلې دانې، لکه: غنم، اوربشې او جوار کرل کېږي. په منځنۍ او سویل ختیځه آسیا کې د آرام سمندر او د هند د سمندر په غاړو کې د زیاتې لمدې هوا او اورښت له امله وریجې کرل کېږي. په دې وروستیو کلونو کې کرنه او د حاصل ټولول په ټولو دغو سیمو او په ځانګړې ډول په هغو هېوادونو کې چې صنعت ته یې ډېره پاملرنه کړې ده میکانیزه شوې ده او زیاتوالی یې پیدا کړی دی. دچای او کنف تولید په هند، پاکستان، سیلون او بنګله دېش کې زیات اهمیت لري.

**مالداري**

دآسیا په لویه وچه کې خصوصاً په منځنۍ او لوېدیځه برخه کې د څارویو ساتل او روزنه ډېر رواج لري. په دې سیمو او په غرنیو سیمو کې ډېر د غوایانو او پسونو روزنه کوي. آس په ځانګړې ډول ترکمني شکلي آسونه په منځنۍ آسیا کې روزل کېږي. د قره قل د پسونو روزنه په افغانستان او ایران کې رواج لري.

د فیل روزنه د سویل ختیځې آسیا په هېوادونو او د هند په یوه برخه کې رواج لري. له فیل څخه په کرنیزو کارونو او حمل و نقل کې ګټه اخیستل کېږي.

**د ټولګي فعالیت**

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي، هره ډله دې لاندېنیو موضوعاتو باندې بحث وکړي او د بحث پایله دې خپلو ټولګیوالو ته بیان کړي.

کرنه.........

مالداري.....

**پوښتنې**

لاندې سمې جملې په (ص) او ناسمې جملې په (غ) نښه کړئ:

۱ ـ دآسیا د لویې وچې اقتصاد په صنعت باندې ولاړ دی. (      )

۲ ـ آسیایي هېوادونه زیار باسي د غذایي توکو د پوره کولو لپاره د کرنیزو تولیداتو اندازه زیاته کړي. (      )

۳ ـ دآسیا د لویې وچې په وچو برخو کې ډېرې وریجې تولیدېږي . (      )

٤ ـ د آسیا په لویه وچه کې د چای تولید په هند، پاکستان، سیلون او بنګله دېش کې ډېر رواج لري. (      )

**له ټولګي څخه بهر فعالیت**

د فیل په اړه چې څه رنګه حیوان دی او په کوم ځای کې د څه کار لپاره ساتل کېږي، یو مطلب ولیکئ او په راتلونکي ساعت کې یې په ټولګي کې بیان کړئ.

# کانونه او صنایع



د گاز تصفیه

آیا پوهېږئ چې د آسیا صنعتي هیوادونه کوم دي؟

د کرنې سربېره د آسیا د لویې وچې د اقتصادي عایداتو بله برخه تر ځمکې لاندې له منابعو څخه گټه اخیستل او د کاني توکو را ایستنه جوړوي چې له کرنې څخه ډېر وروسته گټه ورڅخه واخیستل شوه.
په دې لویه وچه کې استعماري سیالۍ د کانونو په را ایستنه کې د ځنډ او خنډ لامل شو. د آسیا لویه وچه د کانونو او د ځمکې لاندې منابعو خصوصاً نفتو، گازو او ډبرو سکرو په برخه کې ډېره غني ده. د سویل لوېدیځ هېوادونه چې د فارس خلیج په شاوخواکې پراته دي، لکه: سعودي عربستان، عراق، ایران، کویټ، متحده عربي امارات د نړۍ د نفتو او گازو ډېرې مهمې کاني زېرمې لري چې مختلفو هېوادونو ته یې صادروي. د ډبرو سکرو را ایستنه په ایران، ترکیې او هند ( د کلکتې لوېدیځ کې شهرت لري.
د آسیا په ختیځ کې جاپان ډېر لوی صنعتي هېواد دی. که څه هم دا هېواد د کاني زېرمو له پلوه کمزوری دی، خو لږ تر لږه یې د اوسپنې، ډبرو سکرو، مالگې او سلفرو په را ایستنې سره یې خپلو صنایعو ته پراختیا ورکړې ده. جاپان د اوبو د برېښنا له ډېرو لویو تولیدوونکو هېوادو څخه دی. روسیه په آسیایي برخه کې پر نفتو سربېره ، د ډبرو سکرو، اوسپنې او نورو فلزاتو ډېرې زېرمې لري. د آسیا په سویل ختیځ کې اندونیزیا او میانمار د نفتو د تولیدولو ډېر لوی هېوادونه دي.

## صنایع

صنایعو په آسیا کې ډېره وده نه ده کړې، خو درانه صنایع په روسیې، د چین د خلکو په جمهوریت، هند او جاپان کې منځته راغلي. د آسیا ډېر مهم صنعتي هېواد جاپان دی، خو د جنوبي کوریا، چین او تایوان نومونه هم د یادولو وړ دي.

د دې هېوادونو صنعتي توکي د نړۍ هرې خوا ته صادرېږي چې ځینې یې دا دي: هر راز ماشین ألات، الوتکې، موټرونه، تراکتورونه، کمباین، د لارو جوړولو ماشینونه، موټرسیکلونه، راډیو او د عکاسی سامانونه، کاغذي صنایع او کرنیز صنایع په جاپان کې د نفتو اېستلو لویې بیړۍ هم جوړېږي.

د آسیا ځینې هیوادونه اوس هم په کرنې تکیه لري. په دې هېوادونو کې عمده صنعت غالۍ اوبدل او لاسي صنایع دي، خو ورو ورو په صنعتي هېوادونو بدلیږي. هغه آسیایي هېوادونه چې له اوبو او سمندرونو سره نښتي، د هغو سوداګري (صادرات او واردات) د سمندر له لارې کېږي. کب نیول هم په آسیا کې ډېر دود دي.

په آسیا کې د لیدلو وړ توریستیکي ځایونه، لکه: زیارتونه، طبیعي او تفریحي منظرې زیاتې دي. هر کال زرګونه خلک له تاریخي او طبیعي ځایونو څخه لیدنه کوي چې ددې وچې په اقتصاد کې ډېر اهمیت لري.

### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي، هره ډله دې له لاندېنیو موضوعاتو څخه پر یوې په خپل منځ کې سره بحث وکړي او پایله دې د ټولګي په مخ کې بیان کړي.

- کانونه
- صنایع
- توریزم

### پوښتنې

۱ ـ نفت په کومو آسیایي هېوادونو کې زیات دي؟

۲ ـ د آسیایي هېوادونو درانه صنایع ، کوم تولیدات جوړوي؟

۳ ـ د آسیا د ډېرو مهمو صنعتي هېوادونو نومونه واخلئ.

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

د منځني ختیځ په هېوادونوکې د نفتو د رول په اړه معلومات راټول کړئ او په راتلونکي درسي ساعت کې یې په ټولګي کې بیان کړئ.

# د آسیا مواصلاتي جغرافیه



د وریښمو د لارې په اړه څه پوهېږئ؟

د وریښمو لاره لرغونې لاره وه چې چین او هندوستان یې له مدیترانې سمندرګي او اروپا سره نښلول. دا لاره له ډېرو آسیایي هېوادونو په ځانګړي ډول له افغانستان څخه تېرېده. په دې لاره وریښم او درمل له آسیا څخه اروپا ته وړل کېدې. نن لارو له پخوا نه زیات پراختیا موندلې، لارې په دریو برخو وېشي:

۱ ـ د وچې لارې چې له سړکونو او د اوسپنو له پټلیو څخه عبارت دي.

۲ ـ هوایي کرښې.

۳ ـ د اوبو یا سمندري لارې

## ۱ ـ د وچې مواصلاتي لارې

دا لارې سړکونه او د اوسپنې پټلۍ دي. د اوسپنې پټلۍ مهمې، ارزانې او ډېرې د امن لارې دي چې ډېر آسیایي هېوادونه ترې ګټه اخلي. ډېره اوږده د اوسپنې لاره په روسیه کې ده چې د ولادی واستوک بندر چې د جاپان سمندرګي په غاړه پروت دی له مسکواو اروپا سره نښلوي . په اوس وخت کې د ترکیې، ایران، پاکستان او هند هېوادونه له یوبل سره د اوسپنو د پټلیو په وسیله نښلېدلي دي او سوداګریز مالونه او مسافرین بېلابېلو ځایونو ته رسوي. د آسیا په ځینو نویو ښارونو کې د اوسپنې د

ځمکې لاندې پټلۍ د (مترو) په ډول شته دي.

## ۲ـ سمندري لارې

د آسيا خلکو له لرغونو زمانو څخه تر ننه پورې په هغو ځايو کې چې سمندرګيو او سيندونو يې ډېرې اوبه او لږ ځوږ درلود او د بېړۍ چلولو وړ وې له هغو څخه د خلکو او سوداګريزو توکو په وړلو او راوړلو کې ګټه اخيستله. مهم کانالونه او آبناګانې، لکه: د باب المندب آبنا، مالاکا او هرمز د آسيا د لوېې وچې په شاوخواکې پراته دي. د هرمز آبنا چې د عمان د سمندرګي او د فارس خليج په منځ کې پرته ده هره ورځ زيات شمېر بېړۍ ورڅخه تېرېږي او په زرګونو بوشکې نفت د نړۍ ګوټ ګوټ ته لېږدوي. د سويز کانال؛ سور سمندرګی د مديترانې له سمندرګي سره نښلوي چې له دې لارې ډېر سوداګريز مالونه د آسيا، اروپا او افريقا په منځ کې تبادله کېږي.

د مالاکا آبنا چې د ماليزيا او اندونيزيا د هېوادونو په منځ کې پرته ده هم د آسيا ختيځ او سويل ختيځ هيوادونه له نورې نړۍ سره نښلوي.

## ۳ـ هوايي کرښې

هوايي کرښې لوی ښارونه سره نښلوي. د شلمې پيړۍ په وروستيو کې د الوتکو په جوړولو کې ډېر پرمختګونه شوي دي. الوتکه د لېږد (نقليې) ډېره ګړندۍ وسيله ده چې ډېرې آسانتياوې يې په لېږدولو را لېږدولو کې رامنځ ته کړي دي. د هر هېواد لوی ښارونه هوايي ډګرونه لري چې مسافرين او سوداګريز مالونه په لږ وخت کې له يوه ځای نه بل ځای ته لېږدوي.

### د ټولګي فعاليت

زده کوونکي دې په دريو ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د لاندې موضوعاتو په اړه بحث وکړي او پايله دې خپلو ټولګيوالو ته بيان کړي.

۱ـ هوايي کرښې ۲ـ سمندري کرښې ۳ـ د وچې لارې

### پوښتنې

۱ـ د وچې مواصلاتي لارې کومې لارې دي؟
۲ـ ډېره ارزانه او د امن مواصلاتي لاره کومه ده؟
۳ـ کومه آبنا د عمان د سمندرګي او د فارس د خليج په منځ کې پرته ده؟
٤ـ د سويز کانال .......... سمندرګی له .......... سمندرګي سره نښلوي.

### له ټولګي څخه بهر فعاليت

د مواصلاتي لارو د اقتصادي اهميت په اړه يو مطلب وليکئ او د جغرافيې په راتلونکي ساعت کې يې په ټولګي کې ولولئ.

څلور دېرشم لوست

# د آسيا سياسي جغرافيه




د آسيا د سياسي جغرافيې په اړه څه پوهېږئ؟

سياسي جغرافيه د جغرافيې د علم يوه څانګه ده چې د هېوادونو د څلور خوا او سرحدونو په اړه، د کورنيو او نړيوالو اړيکو او اداري جوړښت په اړه بحث کوي.

آسيا د نړۍ ډېره لويه وچه ده چې پراخه ساحه يې نيولې ده. په دې لويه وچه کې ٤٦ خپلواک هېوادونه پراته دي چې بېلابېل رژيمونه لري. په ځينو دغو هېوادونو، لکه: افغانستان او ايران کې اسلامي جمهوري حکم چلوي. يو شمېر نور جمهوري رژيمونه لري. ځينې هېوادونه لکه جاپان شاهي رژيم لري. د قطر او متحده عربي امارات شيخ نيشني حکومت لري او فلسطين خود مختاره دولت لري. ځينې د نظر خاوندان د آسيا لويه وچه د سياسي جغرافيې له مخې په اوو برخو وېشي:

۱ ـ منځنۍ ختيځ چې د آسيا په سهيل لوېديځ کې پروت دی او اسلامي عربي هېوادونه او ايران په کې پراته دي.

۲ ـ د آسيا جنوب چې د افغانستان اسلامي جمهوريت، پاکستان، هند، بنګله دېش په کې پراته دي.

۳ ـ د آسيا سويل ختيځ: چې مهم هېوادونه يې د اندونيزيا اسلامي هېواد او ماليزيا دي.

٤ ـ لرې ختیځ چې مهم هېوادونه يې چين، جاپان او کوريا دي.
٥ ـ منځنۍ آسيا چې د تاجکستان نه تر ترکمنستان او قزاقستان پورې په کې شامل دي.
٦ ـ شمالي آسيا چې يوازې د روسيې آسيايي برخه په کې پرته ده.
٧ ـ لوېديځه آسيا چې په کوچنۍ آسيا هم ياديږي او لوی هېواد يې ترکيه ده.

هغه هېوادونه چې د سمندرونو په خواکې پراته دي د ټولو هېوادونو خواته آزاده لاره لري. د افغانستان، مغولستان، لاووس، نيپال، بوتان او د منځنۍ آسيا هېوادونه آزاد سمندر ته لار نه لري. چې له دې امله د نورو هېوادونو سره په ارتباطي ستونزو اخته دي. د آسيا لويه وچه ډېر او با ارزښته کاني مواد، مهم کرنيز محصولات او ډېر وګړي او ښه د خرڅلاو بازارونه لري. په همدې دليل د اروپا يې هېوادونو د پاملرنې وړ ده. د اروپا استعماري هېوادونه په اوله کې د سوداګريزو کمپنيو په نامه آسيا ته راغلل، وروسته يې ساحلي برخې تر خپلې واکمنۍ لاندې راوستلې. په اتلسمه او نولسمه پيړۍ کې اروپايان (پرتګاليان، هالنډيان، هسپانويان، انګريزان او فرانسويان) آسيا ته راغلل . پرتګاليانو د آسيا سويل ختيځ برخې تر خپل استعمار لاندې ونيولې. هالينډ اندونزيا، انګريزانو د ميانمار نه تر افغانستان پورې اشغال کړل. افغانستان د انګريزانو په ضد درې جګړې وکړې او لومړنی هېواد و چې د نړۍ لوی استعماري قدرت ته يې ماتې ورکړه او خپله خپلواکي يې لاسته راوړه.

د شلمې پيړۍ په منځ کې په آسيا کې يوازې شلو هېوادونو خپلواکي درلوده. د خپلواکۍ غوښتنې غورځنګونه په ملتونو کې ورځ په ورځ ژوندي کيدل، ترڅو چې اکثرو هېوادونو خپله خپلواکي تر لاسه کړه.

**د ټولګي فعاليت**

زده کوونکي دې په اوو ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د سياسي نقشې پرمخ کې د آسيا د اوو برخو يوه، د نقشې پرمخ وښيي.

**پوښتنې**

١ ـ سياسي جغرافيه د کومو موضوعاتو په اړه بحث کوي؟
٢ ـ کوم هېوادونه اسلامي جمهوريت لري؟ نوم يې واخلئ.
٣ ـ کوم هېوادونه آزاد سمندرته لار نه لري؟ نوم يې واخلئ.
٤ ـ ولې د آسيا لويه وچه په اتلسمه او نولسمه ميلادي پيړۍ کې د استعمار ګرو تر پاملرنې لاندې راغلې وه؟

**له ټولګي څخه بهر فعاليت**

هغه هېوادونه چې د آسيا په لويې وچې کې آزاد سمندرته لاره نه لري د هغو هېوادونو سره چې آزاد سمندرته لار لري د اقتصاد له پلوه انډول کړئ او پايله يې په راتلونکي ساعت کې خپلو ټولګيوالوته ولولئ

## د آسيا د لويې وچې د هېوادونو لېست

| شمېره | د هېواد نوم | پلازمېنه | مساحت په کيلومتر مربع | نفوس | د حکومت ډول |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | افغانستان | کابل | ۶۵۲۰۰۰ | ۳۰۰۰۰۰۰۰ | اسلامي جمهوري |
| ۲ | د عربو متحده امارات | ابوظبی | ۸۳۶۰۰ | ۴۲۱۴۰۰۰ | د اوو اميرنشينو فدراسيون |
| ۳ | اندونيزيا | جاکارتا | ۱۹۰۴۲۳۳ | ۲۲۲۷۳۱۰۰۰ | اسلامي جمهوري |
| ۴ | اردن | عمان | ۸۹۳۲۶ | ۵۵۰۵۰۰۰ | مشروطه شاهي |
| ۵ | ازبکستان | تاشکند | ۴۴۷۴۰۰ | ۲۶۳۸۳۰۰۰ | څو حزبي جمهوري |
| ۶ | ايران | تهران | ۱۶۴۸۱۹۵ | ۷۰۴۷۲۸۴۶ | اسلامي جمهوري |
| ۷ | بحرين | منامه | ۶۹۴ | ۷۲۷۰۰۰ | شاهي |
| ۸ | برونئي | د سری بگاوان بندر | ۵۷۶۵ | ۴۷۵۰۰۰ | شاهي |
| ۹ | بنګله دېش | ډاکه | ۱۴۷۵۷۰ | ۱۳۸۸۳۵۰۰۰ | جمهوري |
| ۱۰ | بوتان | تيمپو | ۴۷۰۰۰ | ۷۹۰۰۰۰ | مشروطه شاهي |
| ۱۱ | پاکستان | اسلام آباد | ۷۹۶۰۹۵ | ۱۵۶۷۷۰۰۰۰ | اسلامي‌فدرال‌جمهوري |
| ۱۲ | تاجکستان | دوشنبه | ۱۴۳۱۰۰ | ۷۰۶۳۰۰۰ | جمهوري |
| ۱۳ | تايلند | بنکاک | ۵۱۳۱۱۵ | ۶۴۶۳۲۰۰۰ | مشروطه شاهي |
| ۱۴ | تايوان | تايپی | ۳۶۰۰۰ | ۲۲۸۱۵۰۰۰ | جمهوري |
| ۱۵ | ترکمنستان | عشق آباد | ۴۸۸۱۰۰ | ۴۸۹۹۰۰۰ | جمهوري |
| ۱۶ | ختيځ تيمور | ديلی | ۱۴۸۷۴ | ۱۰۳۲۰۰۰ | څو حزبي جمهوري |
| ۱۷ | ترکيه | انقره | ۷۷۹۴۵۲ | ۷۲۹۳۲۰۰۰ | څو حزبي جمهوري |
| ۱۸ | چين | پيکنګ | ۹۵۷۲۹۰۰ | ۱۳۱۱۳۸۱۰۰۰ | يو حزبي سوسيالستي جمهوري |
| ۱۹ | روسيه | مسکو | ۱۷۰۷۵۴۰۰ | ۱۴۲۳۹۴۰۰۰ | فدرالي جمهوري |
| ۲۰ | جاپان | توکيو | ۳۷۷۸۱۹ | ۱۲۷۷۱۶۰۰۰ | مشروطه شاهي |
| ۲۱ | سريلانکا | کولمبو | ۶۵۶۱۰ | ۱۹۸۷۹۰۰۰ | جمهوري |

| شمیره | د هېواد نوم | پلازمېنه | مساحت په کیلومتر مربع | نفوس | د حکومت ډول |
|---|---|---|---|---|---|
| ۲۲ | سنګاپور | سنګاپور | ۶۴۱ | ۴۴۰۸۰۰۰ | جمهوري |
| ۲۳ | سوریه | دمشق | ۱۸۵۱۸۰ | ۱۸۵۴۲۰۰۰ | جمهوري |
| ۲۴ | عراق | بغداد | ۴۳۸۳۱۷ | ۲۸۵۱۳۰۰۰ | جمهوري |
| ۲۵ | سعودي عربستان | ریاض | ۲۲۴۰۰۰۰ | ۲۳۶۸۷۰۰۰ | مشروطه شاهي |
| ۲۶ | عمان | مسقط | ۳۰۹۵۰۰ | ۲۵۱۶۰۰۰ | مطلقه شاهي |
| ۲۷ | فلسطین | قدس | ۶۲۶۳ | ۴۱۴۱۰۰۰ | خود مختاره دولت |
| ۲۸ | فلیپین | مانیلا | ۳۰۰۰۰۰ | ۸۵۵۶۳۰۰۰ | څو حزبي جمهوري |
| ۲۹ | قبرس | نیکوزیا | ۹۲۵۰ | ۱۰۰۴۰۰۰ | څو حزبي جمهوري |
| ۳۰ | قرغزستان | بیشکک | ۱۹۸۵۰۰ | ۵۱۹۲۰۰۰ | څو حزبي جمهوري |
| ۳۱ | قزاقستان | استانه | ۲۷۱۷۰۰ | ۱۵۲۴۲۰۰۰ | څو حزبي جمهوري |
| ۳۲ | قطر | دوحه | ۱۱۴۷۱ | ۸۳۸۰۰۰ | امارتي شیخ نشین |
| ۳۳ | کمبودیا | پنوم پن | ۱۸۱۰۳۵ | ۱۳۶۴۸۰۰۰ | مشروطه شاهي |
| ۳۴ | سویلي کوریا | سیول | ۹۹۶۴۶ | ۲۸۱۳۸۰۰۰ | څو حزبي جمهوري |
| ۳۵ | شمالي کوریا | پیونګ یانګ | ۱۲۲۷۶۲ | ۲۲۵۸۳۰۰۰ | څو حزبي جمهوري |
| ۳۶ | کویت | کویت | ۱۷۸۱۸ | ۳۰۸۴۰۰۰ | مشروطه شاهي |
| ۳۷ | لاووس | وین تیان | ۲۳۶۸۰۰ | ۵۷۵۱۰۰۰ | څو حزبي جمهوري |
| ۳۸ | لبنان | بیروت | ۱۰۴۰۰ | ۳۸۳۴۰۰۰ | څو حزبي جمهوري |
| ۳۹ | مالدیو | ماله | ۲۸۹ | ۳۰۰۰۰۰ | جمهوري |
| ۴۰ | مالیزیا | کوالا لامپور | ۳۲۹۷۵۸ | ۲۶۶۴۰۰۰۰ | مشروط فدرال شاهي |
| ۴۱ | مغولستان | اولان باتور | ۱۵۶۶۵۰۰ | ۲۵۸۰۰۰۰ | څو حزبي جمهوري |
| ۴۲ | میانمار | رنګون | ۶۷۶۵۷۷ | ۴۷۳۸۳۰۰۰ | څو حزبي جمهوري |
| ۴۳ | نیپال | کتمندو | ۱۴۷۱۸۱ | ۲۷۶۷۸۰۰۰ | مشروطه شاهي |
| ۴۴ | ویتنام | هانوی | ۳۳۱۰۴۱ | ۸۳۴۵۸۰۰۰ | څو حزبي جمهوري |
| ۴۵ | هند | نوی ډهلي | ۳۱۶۵۵۹۶ | ۱۱۱۹۵۳۸۰۰۰ | څو حزبي جمهوري |
| ۴۶ | یمن | صنعا | ۵۵۵۰۰۰ | ۲۰۶۷۶۰۰۰ | څو حزبي جمهوري |

## د څپرکي لنډیز

ـ آسیا د نړۍ ډېره لویه وچه ده چې ډېره برخه یې په ختیځه نیمه کره او شمالي نیمه کره کې پرته ده.
ـ د آسیا لویه وچه لرغوني تمدنونه او دینونه لري.
ـ آسیا لوړ غرونه (همالیا، هندوکش او البرز) او پراخې دښتې (د مغولستان دښته په مغلوستان کې، لوت په ایران کې، او ربع الخالی په عربستان کې) لري.
ـ په آسیا کې زیات سیندونه بهیږي چې عبارت دي له اوب، آمور، سند، هلمند، کارون، فرات او داسې نورو څخه.
ـ د جغرافیایي موقعیت پر بنسټ، زیات جهیلونه د آسیا په قاره کې شته دي چې عبارت دي له: بایکال، بالخاش، شیوا، ارومیه، وان او ارال څخه.
ـ د آسیا مهم خلیجونه د فارس خلیج، بنګال، عقبه او مهم سمندرګی یې د کسپین سمندرګی دی چې د آسیا د لویې وچې لوی داخلي سمندرګي جوړوي.
ـ دې موضوع ته په پاملرنې چې د آسیا لویه وچه د استوا له کرښې نه تر شمالي قطب پورې پرته ده، بېلا بېل اقلیمونه لري، لکه: د قطبي ساحې اقلیم، یخچالي، د قطبي لاندې اقلیم، د منځنۍ آسیا د سټپ سیمه، غرنۍ او لوړې څوکې، صحرایي، معتدله، مدیترانه یي، استوایي سوانا او استوایي او باراني ځنګلونه.
ـ د آسیا په لویه وچه کې د وګړو مېشت کېدل یو ډول نه ده په کرنیزو پراخو ځمکو، د صنعتي فابریکو په څنګ، ښارونو او سوداګریزو بندرونو او ... کې د وګړو تراکم زیات او په غرنیو او تودو لندو ځنګلي سیمو کې وګړي لږ دي.
ـ د آسیا خلك سپین، ژیړ او کمرنګه تور نژاد لري.
ـ دآسیا اقتصاد پخوا ډېر په کرنه او مالداری باندې ولاړ و او په ابتدایي توګه و.
ـ د آسیا سویل لوېدیځ هېوادونه د نړۍ د نفتو او ګازو ډېرې لویې زېرمې لري.
ـ د آسیا ډېر مهم صنعتي هېوادونه دادي: جاپان، سویلي کوریا، چین او تایوان.
ـ د آسیا مواصلاتي لارې په دریو برخو، د وچې لارې، هوایي کرښې او د سمندري اوبیزو لارو باندې ویشل شوې دي.
ـ د باب المندب، هرمز او ملاکا آبناګانې له اقتصادي او نظامي پلوه ډېر اهمیت لري او د آسیا په وچه کې پرتې دي.
ـ د سویز کانال سور سمندرګی او د مدیترانې سمندرګی سره نښلوي.
ـ د افغانستان او ایران هېوادونه اسلامي جمهوري حکومت لري.
ـ د قطر او متحده اماراتو هېوادونه د شیخ نشیني حکومت لري.
ـ د آسیا لویه وچه د سیاسي جغرافیې له مخې په اوو سیمو وېشل کېږي چې عبارت دي له: منځنۍ ختیځ، سویلي آسیا، سوېل ختیځ، لرې ختیځ، منځنۍ آسیا، شمالي آسیا او لوېدیځه آسیا.
ـ د آسیا لویه وچه زیات او ارزښتناکه کاني منابعو او د خرڅلاو د ډاډمنو بازارونو، د لرلو له امله تل د استعماري هېوادونو د پاملرنې وړ ګرځېدلي دي.

## جغرافيايي اصطلاحات

**اعتدالين**: د کال هغه وختونه چې د لمر وړانګې د استوا پر کرښې باندې عمودي لګيږي او دواړه قطبونه په يوه اندازه له لمر څخه ګټه اخلي او د استوا د کرښې په اوږدو په شمالي او سوېلي نيمو کرو کې په هره سيمه کې د ورځې اوږدوالی ۱۲ ساعته دی. د اعتدالين وخت د پسرلي لومړۍ نېټه (د حمل لومړۍ) او د منې لومړۍ (د ميزان لومړۍ) ده.

**اقليم**: د ځمکې د هوا منځنۍ اندازه ده چې په يوې ټاکلې سيمې کې په يوې اوږدې مودې کې ټاکل کېږي.

**استوايي قطر**: د ځمکې د کُرې ډېر لوی قطر ته وايي چې ځمکه په مساوي دوو شمالي او سوېلي نيمو کرو وېشي.

**تندرا**: روسي کلمه ده چې د روسيې په شمال کې هغوسيمو ته ويل کېږي چې ونې نه لري چې ژمی يې سوړ او اوږد او د کال په ډېرو ورځو کې کنګل وي. د هغه ځای دوبی ډېر لنډ او د تودوخې درجه له مثبت لسو درجو نه کمه وي اوپه همدې لنډې مودې کې د ځمکې د مخ کنګلونه ويلې کېږي او بوټې لکه: خزې او ګلسنګ وده کوي.

**تمدن**: په ښار کې ژوندکول، ښاري رسم او رواج سره بلدتيا او د ځان لپاره د پرمختګ د ښه ژوند د اسبابونو تيارولو ته تمدن وايي.

**توريست**: د تاريخ له مخې فرانسوي اشراف زاده ګانو ته چې د تحصيل او په ژوند کې د تجربو د لاسته راوړلو لپاره به سفر ته تلل توريست (سيلاني) يې ورته وايه. دا اصطلاح له نولسمې پيړۍ نه معمول شوه، وروسته يې دا اصطلاح په فرانسې کې هغو خلکو ته کاروله چې د وزګارتيا د وخت تيرولو لپاره به يې فرانسې ته سفر کاوه. داسې سفرونو ته نړۍ ګرځېدل يا توريزم وويل شو.

**جهيل**: ډېرې پراخې ولاړې اوبه دي چې په طبيعي حالت باندې د وچې په واسطه چاپېرشوې وي.

**جنوبي نيمه کره**: له استوا کرښې نه تر جنوبي قطبه پورې جنوبي نيمه کره ده.

**حضيض**: کله چې ځمکه خپل انتقالي حرکت کې چې د لمر په چاپېره ګرځي هغه وخت چې د ځمکې او لمر واټن ډېر نژدې شي د حضيض په نامه يادېږي.

**خلیج**: په وچه کې د پراخو او ژورو اوبو مخکې تنګ دی چې دریو خواووته یې وچه او یوې خواته یې اوبه چاپیره شوې وي.

**څرځای**: هغه ځمکه ده چې ډېر بوټي پکې شنه کېږي چې څاروي کولای شي یوه موده پکې وڅري.

**څوکه**: د غره ډېرې لوړې برخې ته وایي.

**د ارکتیک دایره**: د شمالي عرض البلد $66\frac{1}{2}$ درجه، په دې اصطلاح یادوي.

**د انتارکتیک دایره**: د جنوبي عرض البلد $66\frac{1}{2}$ درجو ته انتارکتیک ویل کېږي.

**د استوا دایره**: د عرض البلد لویه دایره ده چې د ځمکې کره په دوو شمالي او سویلي نیمو کرو وېشي.

**د جدي دایره**: د جنوبي کرې $23\frac{1}{2}$ درجې چې د لمر وړانګې د جدي په لومړۍ نېټه وربانديې عمودې لګیږي.

**د سرطان دایره**: د شمالي عرض البلد $23\frac{1}{2}$ درجې چې د لمر وړانګې د سر طان پر لومړۍ ورځ وربانديې عمودې لګیږي.

**د عرض البلد دایره**: هغه دایرې چې د استوا د کرښې سره موازي دي او د ختیځ لوېدیځ لوری لري او د طول البلد پر دایرو عمودوي.

**د قطب ستوری**: غټ او ځلېدونکی ستوری دی او د ځمکې شمالي قطب د هغه په لور پروت دی.

**د اوړي شمسي انقلاب**: دا انقلاب هغه وخت رامنځ ته کېږي چې د لمر وړانګې د سرطان پر کرښې (شمالي $23\frac{1}{2}$ درجو) باندې د سرطان د میاشتې په لومړۍ نېټې باندې رامنځ ته کېږي. چې په شمالي نیمه کره کې دوبی پیلیږي.

**د ژمي شمسي انقلاب**: د ا انقلاب د جدي پر کرښې (جنوبي $\frac{1}{2}$۲۳ درجو ) باندې د لمر د وړانګو عمودېدل د جدي د میاشتې په لومړۍ ورځې باندې کېږي. چې په شمالي نیمه کره کې ژمی پیلیږي.

**د کرنې ابتدایي طریقه**: هغه کرکیله ده چې د لاس او حیواني یوې باندې سرته رسیږي.

**د کرنې ماشیني طریقه**: هغه کرکیله ده چې د کرنیزو ماشین آلاتو په واسطه کېږي.

**د جنوبي قطب نقطه**: د ځمکې د کُرې وروستۍ جنوبي نقطه ده چې د ځمکې د محور په جنوبي وروستۍ برخه کې پرته ده.

**د ځمکې محور**: فرضي کرښهٔ ده چې د ځمکې کره د هغه په چاپېره ګرځي.

**د ځمکې د محور میلان**: د$\frac{1}{2}$۲۳ درجو زاویه ده چې د ځمکې د کرې د محور د فرضي کرښې او مستوی مدار باندې د عمودی کرښې ترمنځ تشکیلږي.

**ستپ**: د وښو سیمه چې د کرنې او ځارویو څرځای ته برابره وي. هغه سیمې چې نیمه وچ اقلیم لري چې واښه او نې په خپاره ډول پکې لیدل کېږي.

**سمندرګی**: د پراخو اوبو یوې برخې ته وایي چې تر سمندر وړه وي. ځینې وخت د سمندر سره نښتې وي او کله د وچې په واسطه چاپېره شوې وي.

**سوانا**: اقلیمي سیمه ده چې بوټي، نیزارونه او ټیټې ونې لري.

**شالیزار**: هغه ځمکې چې شولې پکې کرل کېږي.

**شمالي قطب**: د ځمکې د کرې شمالي وروستنۍ برخې ته وایي.

**شمالي نیمه کره**: له استوا کرښې نه تر شمالي قطبه پورې شمالي نیمه کره ورته وایي.

**صنعت**: هغه کار او فعالیت دی چې د هغې په واسطه خام توکي په پخو توکو بدلیږي. د مثال په توګه: له اوسپنو څخه موټر او له پنبې څخه ټوکر او کالي جوړیږي.

**صحرايي اقليم**: هغه اقليم دی چې ځانګړتیاوې یې د اوربښت لږوالی، د شپې او ورځې د تودوخې د درجې زيات توپیر، سخت بادونه او د بوټو او نباتاتو لږ والی دی.

**طبيعي جغرافيه**: د جغرافيې یوه څانګه ده چې د غرونو، سیندونو، د هوا د تودوخې، نباتاتو او سمندرونو په اړه بحث کوي.

**طبيعي ځنګل**: د ځمکې یوه سیمه ده چې په خپله پرې ونې او بوټې شنه ه شوي وي.

**طول البلد**: هغه نيم دايروي کرښې چې د شمالي قطب او سويلي قطب په منځ کې غځېدلې وي او پر عرض البلد باندې عمودې وي.

**قطبي قطر**: چې په اصل کې د ځمکې محور دی او په استوايي قطر عمود وي. یوه څنډه یې شمالي قطب او بله څنډه یې جنوبي قطب جوړوي.

**قيمتي ډبرې**: لاجوردو، یاقوتو، فیروزه او نورو ته قیمتي او با ارزښته ډبرې وايي.

**ګرينويچ**: لندن ته نژدې یو پارک دی چې د ګرينويچ رصدخانه پکې جوړه شوې ده. او د صفر درجې طول البلد د هغه له منځ څخه تيرېږي.

**ماشيني صنايع**: هغه کار او فعاليت دی چې د توکو جوړول د ماشين په واسطه کېږي.

**مجسمه کُره**: د ځمکې د کرې کوچنی مدل په يو ټاکلی مقياس باندې دی.

**واردات:** سوداګريز مالونه چې له بهر څخه هېواد ته راوړل کېږي، لکه: موټر، کالي، د برېښنا وسيلې، خوراکي توکي او داسې نور.

**هکټار**: د مساحت د اندازه کولو واحد دی او د هرو لسو زرو مترو مربعو معادل یا پنځه جريبه ځمکه ده

**هوا (جو)**: د ځمکې د مخ چارچاپېره هوا ته جو وايي.